# د روژې میاشت

## څه ډول استقبال کړو؟

لیکنه: دوکتور رفیع الله عطاء

۱۳۸۶ لمریز کال

بسم الله الرحمن الرحیم

# پیلیزه

## د روژې مبارکه میاشت !

د روژې مبارکه میاشت رمضان نومیږي چې په اسلام کې ځانګړی ځای لري. لکه څرنګه چې الله پاك ځینې شیان په نورو باندې غوره کړي دي په دې لړ کې یې د روژې میاشت پر نورو ټولو میاشتو غوره ګرځولې ده.

روژه هغه میاشت ده چې الله پاك پکې قرآن کریم نازل کړی دی، د رمضان د مبارکو شپو څخه یوه هم د قدر شپه ده چې د زرو نورو میاشتو څخه غوره ده، دغه د برکت څخه ډکه میاشت په تاریخي لحاظ سره د مسلمانانو او اسلامي سوبو او بریالیتوبونو میاشت هم ده، د اسلام د سپیڅلي دین د ریښتیني او ستر پیغمبر په مشرتابه کې دهغه ریښتینو ملګرو او په خدای مینو سپاهیانو ته په دغه میاشت کې ګڼ شمیر بریالیتوبونه ور په برخه شوي دي د بدر تاریخي غزا چې د روژې په اولسمه نیټه پیښه شوه ,مشرکانو او دالله دښمنانو ته یو غاښ ماتوونکی ګوزار و, په نوموړې غزا کې له مسلمانانو سره الهي مرسته د قرآن کریم په مبارکو آیاتونو کې ثابته ده.

همدا راز د مکې مکرمې تاریخي فتحه هم په دغه مبارکه میاشت کې پیښه شوې ده چې په دې فتحې سره دکفر او شرك ماڼۍ ونړیدې او له بیت الله شریف څخه د بتانو جنازې ووتې.

روژه ګڼ شمیر ښیګړې لري، روژه د اسلام دریم رکن او خورا مهم عبادت دی نو په کار دي چې ټول مسلمانان یې په ډیره خوښۍ، قوي عزم او ریښتونې توګه اداء کړي.

دا رساله چې د درنو لوستونکو په مخ کې ده د روژې د بختورې میاشتې (۱۴۱۹ هـ ق ) په ویاړ لیکل شویده.

پدې کې د روژې فضایل ، احکام ، آداب او ځینې نصیحتونه ذکر شوي دي هیله ده چې پښتو ژبې مسلمانان او په ځانګړې توګه هغه وروڼه او خویندې چې د عـربي ژبې څخه مطلب نه شي اخیستلای ددغې رسالې څخه ګټه واخلي.

## په دې رساله کې لاندې ټکي د پام نه مه غورځوی:

۱ – دا رساله د حنفي فقهې پـر اسـاس لیکـل شـوې ده ځکـه چـې زمـونږ ټولنـه اکثره حنفي مذهبه ده نو ضرورت هم دا و چې په حنفي مذهب ولیکل شي.

۲ – د حنفي فقهې د باوري مراجعو څخه پکې استفاده شوې ده.

۳ – کوښـښ شـوی دی چـې ګـڼ جزئیـات پکـې راټـول شي خـو دا چـې فقهـي جزئیـات ډیـر زیـات دي نـو کیـدای شي ځینـې مسـائل پکـې پـاتې وي چـې دهغـو پوښتنه د وخت له علما و څخه کیدای شي.

۴ – په احکامو کـې ضـعیف احادیـث نـه دي ذکـر شـوي او پـه فضـایلو کـې هـم ورڅخه ژغورنه شوې ده.

۵ – دا رساله چې د مقالو په توګه ځینو مطبوعاتو ته له چـاپ نـه مخکـې ورکـړل شوې وه کیدای شي ترتیب پکې ښه نه وي رعایت شوی, هیلـه ده درانـه لوسـتونکي مو عذر ومني.

الله پاك دې وکړي چې زمونږ دا کوچنی کار خاص د خپلـې رضـا لپـاره ومنـي او خلکوته پرې ګټه ورسوي.

والسلام علیکم ورحمت الله و برکاته

الفقیررفیع الله عطاء

۹ رمضان المبارك ۱۴۱۹هـ ق

۲۷ / ۱۲ / 1998م.

# لومړی فصل

**د روژې تعریف:** روژه په لغت کې مطلقا امساك ( لاس نیولو او ځان منع کولو ) ته ویل کیږي برابره خبره ده که هغه د خبرو کولو څخه وي او که د عمل کولو څخه او یا د نورڅه څخه.[1]

## روژه په اصطلاح کې:

روژه د شریعت په اصطلاح کې د هغه چا څخه چې د عبادت اهل وي د نیت کولو سره د سبا ختلو څخه تر ماښام پورې د خوراك څښاك او جماع ( خپلې ښځې سره کور والی ) پرېښودلو څخه عبارت ده.[2]

**د رمضان تعریف:** رمضان د قمري میاشتو څخه یوه مشهوره میاشت ده چې اصل ماده ( حروف او اشتقاق ) یې د رمض څخه ده چې هغه سختې گرمی ته ویل کیږي او کله چې د پخوانی ژبې څخه د میاشتو نومونه نقل کیدل نو د همغه موسم سره برابر نوم یې ورته ورکړ (رمضان داسې وخت کې کیښودل شو چې زیاته گرمي وه ).

فراء چې د عربي ژبې یو نامتو عالم دی وایي چې: کله رمضان او ربیع ذکر کیږي نو شهر هم ورسره ذکر کیږي لکه شهر رمضان او شهر ربیع یعنې د رمضان میاشت او د ربیع میاشت په داسې حال کې چې د نورو میاشتو نومونو سره شهر ( میاشت ) نه ذکر کیږي.

داډول رمضان کیدای شي چې د ( رمض الصایم ) څخه اخیستل شوي وي یعنی ډیر گرم شو روژه دارکله یې چې د ډېرې تندې له امله گېډه گرمه شي.[3]

---

[1] - مختار الصحاح لمحمد بن ابی بکر الرازیص ۳۷۴ طبع دارالقلم القاموس الفقهی لسعدی ابوحبیب ص ۲۱۸ طبع: اداره القران و فتح القدیر شرح الهدایه ۲ / ۲۳۴.

[2] – کنزالدقایق ص ۶۶ ۱ طبع بلوچستان والقاموس الفقهي ص ۲۱۸.

[3] – لسان العرب ۷ / ۱۶۲

د رمضان د مبارکې میاشتې د حقونو او آدابو د پر ځای کولو په صورت کې د ګناهونو سوزوونکې میاشت ده چې په دې توګه یې هم د ګرموالي سره نسبت پیدا کیږي.

**د رمضان د مبارکې میاشتې ښیګړې:** د رمضان مبارکه میاشت هغه میاشت ده چې د الله تعالی له خوا پکې پر حضرت محمدصلی الله علیه وسلم قرآنکریم نازل شوی دی.او قرآنکریم د مسلمانانو لپاره قانون او دهغه د عملي کولو په صورت کې د دنیا او اخرت د سوکالۍ او نیکمرغۍ وسیله ده، الله تعالی په قرآنکریم کې فرمایي:

(( **شهر رمضان الذی انزل فیه القران هدی للناس** )).[4]

رمضان هغه میاشت ده چې په هغې کې قرآن د خلکو د لارښوونې لپاره نازل شوی دی.

دا ډول د رمضان په مبارکه میاشت کې یوه د قدر شپه هم شته چې دالله تعالی په نزد زرو نورو هغو میاشتو څخه غوره ده چې دغه شپه پکې نه وي، الله تعالی فرمایلي دي: (( انا انزلناه في لیلة القدر و ماادراك ما لیلة القدر لیلة القدر خیر من الف شهر )) [5]

**ژباړه:**بیشکه مونږ نازل کړی دی دغه ( ټول قرآن ) د قدر په شپه کې او څه شي پوه کړی یې ته (اې محمده!) چې د قدر شپه څه ده (د عزت او شرافت له پلوه ؟ ) د قدر شپه غوره ده له زرو میاشتو څخه (هغه زر میاشتې چې دغه شپه د قدر پکې نه وي ).

د رمضان مبارکه میاشت د مسلمانانو لپاره د فتحې او د بریالیتوب میاشت هم ده چې په همدې میاشت کې یې ستر ستر بري په نصیب شوي دي لکه د بدر غزا د مکې فتحه او داسې نور.

د رمضان مبارکه میاشت هغه میاشت ده چې د جنت دروازې پکې خلاصیږي او د جهنم دروازې پکې تړل کیږي، د حضرت ابوهریره رضی الله عنه څخه روایت دی

---

[4] - سورة البقره.
[5] - سورة القدر آیة ۱ - ۲ – ۳.

چې رسول الله صلى الله عليه وسلم به فرمايل: ((قد جاء كم شهر رمضان, شهر مبارك, افترض الله عليكم صيامه تفتح فيه ابواب الجنة و تغلق فيه ابواب الجحيم, وتغلق فيه الشياطين فيه ليلة خير من الف شهر, من حرم خيرها فقد حرم )) [6]

**ژباړه:** د رمضان میاشت درته راغله چې مبارکه میاشت ده, الله (ج) دهغې روژه فرض کړې ده چې په هغې کې د جنت دروازې خلاصیږي , د جهنم دروازې تړل کیږي او شیطانان پکې بندیانیږي, او یوه پکې شپه ده چې د زرو میاشتو څخه غوره ده, څوك چې د دې میاشتې د خیر څخه محروم شو نویقینا دلوی برکت اوخیر څخه محروم شو.

**په یو بل حدیث شریف کې راغلي دي:** عن ابي هريرة رضى الله عنه, عن النبى صلى الله عليه وسلم قال: اذا دخل شهر رمضان فتحت ابواب السماء وغلقت ابواب جهنم وسلسلت الشياطين. [7].

**ژباړه:**حضرت ابوهريره رضى الله عنه د پيغمبر صلى الله عليه وسلم څخه روايت کوي چې هغه مبارك فرمایلي دي چې: کله د رمضان میاشت داخل شي د اسمان دروازې خلاصې شي او د جهنم دروازې وتړل شي او شیطانان ( علیهم اللعنة) پر ځینځیرونو وتړل شي.

دروژې گ میاشت ښیگړې او فضائل ډیر زیات دي چې د نمونې په توگه مونږ د هغې یوه ډیره کوچنۍ برخه دلته ذکر کړه .

**روژه په پخوانیو امتونو کې:** د روژې گ فرضیت د حضرت محمد صلى الله عليه وسلم امت پورې خاص نه دی بلکې روژه په نورو لومړنیو امتونو باندې هم فرض وه الله تعالی په قرآن کریم کې فرمایلي دي چې: ياايهاالذين امنوا كتب عليكم الصيام كما كتب على الذين من قبلكم لعلكم تتقون. [8].

---

[6] ـ مسند الامام احمد ۲/ ۲۳۰ طبع: دار الفكر.
[7] ـ صحيح البخاري كتاب بدء الخلق باب ۱۱.
[8] ـ سورة البقرة .

**ژباړه:** اې هغه کسانو چې ایمان یې راوړی دی (اې مومنانو!) روژه په تاسې باندې فرض کړای شوې ده لکه څنګه چې په هغه کسانو فرض کړای شوې وه چې پخوا له تاسې څخه وو ( لکه پخواني امتونه ).

په تفسیر کابلي کې ( د شیخ الهند صاحب او شبیر احمد عثماني صاحب د تفسیر ترجمه ) د پورتني مبارك آیت په تفسیر کې لیکل شوي دي چې: دا حکم ( د روژې ګ حکم د ادم علیه السلام له زمانې څخه تر اوسه پورې جاري دی )[9] او مولنا مفتي محمد شفیع رحمه الله هم دغه مطلب په خپل تفسیر کې ذکر کړی دی .[10]

**اوپه تفسیر ابن کثیر کې د نوموړي آیت لاندې ذکر دی چې:** د حضرت معاذ، حضرت ابن مسعود, حضرت ابن عباس, عطاء, قتادة او ضحاك رضی الله تعالی عنهم څخه روایت دی چې دوی ویلي دي: د نوح علیه السلام د زمانې څخه را پدیخوا هره میاشت کې د درې ورځو د روژې ګ نیولو حکم و, تر دې چې الله تعالی دغه لرغونی حکم د رمضان د یوې میاشتې په روژې ګ باندې منسوخ کړ.

همدغه راز حافظ ابن کثیر په خپل تفسیر کې د ابن عباس رضی الله عنهما څخه د ( کما کتب علی الذین من قبلکم ) په تفسیر کې ذکر کړی دی چې: مراد له پخوانیو امتونو څخه اهل کتاب دي .دغه روایت یې د یو شمیر نورو تابعینو څخه هم نقل کړی دی.[11].

لنډه دا چې په پخوانیو امتونو کې هم د روژې ګ د فرضیت حکم موجود و که څه هم په جزئیاتو کې به یې فرق موجود و لکه مخکې چې ذکر شو د هغوی روژه په هره میاشت کې درې ورځې وه او د اسلام په لمړني وخت کې هم په هره میاشت کې درې ورځې وه. چې د رمضان میاشتې په روژې ګ سره هغه حکم منسوخ شو.[12]

[9] - تفسیر کابلي ۱/ ۱۳۴
[10] - معارف القران ۱ / ۱۰۹.
[11] - تفسیر القران العظییم للامام الحافظ ابن کثیر ۱/ ۳۳۳ طبع:بیروت.
[12] - سنن ابي داود ۱/ ۱۴۰ طبع دار احیاء السنة.

شاه ولی الله رحمه الله په حجة الله البالغه کې ليکلي چې نوح عليه السلام هميشه روژه و. او داود عليه السلام يو ورځ پس او عيسی- عليه السلام دوه ورځې پس روژه کيدل. [13].

د شاه صاحب د ځرګندونې څخه هم معلوميږي چې روژه ډير اوږد تاريخ لري.

**په اسلام کې د روژې ګ د فرضيت تاريخ:** د رمضان د مبارکې مياشتې روژه پر مسلمانانو د هجرت په دوهم کال د شعبان په مياشت کې فرض شوې ده. [14].

د روژې ګ فرضيت په قرآنکريم, سنتو او د مسلمانانو په اجماع سره ثابت دی الله تعالی په قرآنکريم کې فرمايلي دي: (( يا ايهاالذين امنوا کتب عليکم الصيام کما کتب على الذين من قبلکم )). [15].

**ژباړه:** اې ګ هغه کسانو چې ايمان يې راوړی دی ( اې مومنانو! ) فرض کړای شوې ده په تاسې باندې روژه لکه څنګه چې په هغه کسانو فرض شوې وه چې ستاسې څخه مخکې و.

بل ځای کې الله تعالی فرمايي: فمن شهد منکم الشهر فليصمه. [16] .

ترجمه: هغه څوك چې له تاسې څخه د رمضان مياشتې ته حاضر شي نو هرو مرو دې په هغې کې روژه ونيسي.

**د روژې ګ په فرضيت د پيغمبر صلى الله عليه وسلم د سنتو څخه دليل:**

امام بخاري په خپل سند سره د پيغمبر صلى الله عليه وسلم څخه روايت کوي چې: ان اعرابيا جاء الى رسول الله صلى الله عليه وسلم ثائر الراس فقال: يا رسول الله ... اخبرني ما فرض الله على من الصيام ؟ فقال: شهر رمضان الا ان تطوع. [17].

ژباړه: په تحقيق سره يو اعرابي په داسې حال کې چې د سر ويښته يې ببر و رسول الله صلى الله عليه وسلم ته راغی او ورته يې وويل: يارسول الله: ماخبر کړه چې الله پاك پر ما روژه ګ( څومره او څه وخت ) فرض کړې ده؟پيغمبر صلى الله

---

[13] - حجة الله البالغه ٢ / ١۴٢ طبع: داراحياء العلم.
[14] - نيل الاوطار ۴ / ١٨۶ طبع بيروت او کتاب الفقه على المذاهب الاربعة ١ / ۵۴٣ طبع: بيروت.
[15] - سورة البقرة .
[16] - سورة البقره.
[17] - صحيح البخاري ١ / ٢٧۶ طبع: دار الفکربيروت.

علیه وسلم ورته وویل چې: د رمضان د میاشتې روژه پر تا فرض ده مګر که چیرته په خپله خوښه ( نفلي ) روژه نیسي.

همدغه راز امام بخاري په یو بل حدیث شریف کې په خپل سند سره روایت کوي چې حضرت ابن عمر رضی الله عنهما ویلي دي چې: قال رسول الله صلی الله علیه وسلم: بنی الاسلام علی خمس: شهادة ان لا اله الاالله, و ان محمدا رسول الله, و اقام الصلاة, وآیتا الزکاة والحج, وصوم رمضان.[18].

ژباړه: رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي چې: اسلام په پنځه شیانو بناء شوېدی: ګواهي ورکول په دې چې پر ته له الله تعالی څخه بل حقیقي معبود نشته او حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د الله پاك ریښتینی استازی ( رسول او پیغمبر ) دی, او لمونځ کول او د زکات ورکول اود حج د فریضې ادا کول او د رمضان د میاشتې روژه نیول.

علامه ابن الهمام په فتح القدیر کې لیکلي دي چې: د کلمې طیبې ( لا اله الا الله محمد رسول الله ( څخه وروسته روژه د اسلام دریم رکن دی.[19].

په همدې توګه داسې احادیث زیات دي چې د روژې فرضیت ور څخه ثابتیږي چې مونږ یې د ظروفو د غوښتنې له امله په یوه کوچنۍ برخه بسوالی وکړ.

**د روژې ګ فرضیت په اجماع سره:** ټول مسلمانان د پیغمبر صلی الله علیه وسلم څخه تر اوسه پورې په دې خبره باندې اتفاق لري چې د رمضان میاشت روژه نیول فرض دي او هیچا ورڅخه په مسلمانانو کې انکار نه دی کړی او د روژې ګ د فرضیت څخه انکار کفر دی .[20].

## د روژې ګ ښیګړې:

روژه ګڼ شمیر دنیوي او اخروي ښیګړې او ځانګړتیاوې لري چې په لاندې توګه د هغې یو شمیر ښیګړې او ځانګړتیاوې بیانوو.

### الف: روژه په قرآنکریم کې:

[18] ـ صحیح البخاري ۱ / ۱۰ .
[19] ـ فتح القدیر ۲ / ۲۳۳, طبع: المکتبه الرشیدیة کویته باکستان.
[20] ـ الفه علی المذاهب الاربعة ۱ / ۵۴۳ طبع بیروت.

په قرآنکريم کې د روژې گ ذکر د صوم او صيام په صيغه لس ځايه راغلی دی چې د هغې جملې څخه پنځه ځايه يوازې په سورت بقره کې راغلی چې تفصيل يې په لاندې توگه دی:

١ – (( ياايهاالذين امنوا کتب عليکم الصيام کما کتب علی الذين من قبلکم ))[21].

٢ – ((احل الله لکم ليلة الصيام الرفث الی نسائکم ))[22]

3 - ((ثم اتموا الصيام الی الليل ))[23].

۴ - (( ففدية من صيام او صدقة او نسك ))[24]

۵ - (( فمن لم يجد فصيام ثلاثة ايام في الحج ))[25]

يوځای په سورت نساء کې ذکر شوی ده:

٦ - (( فمن لم يجد فصيام شهرين متتابعين توبة من الله ))[26]

دوه ځايه په سورة مائدة کې ذکر شوې ده.

٧ - ((فمن لم يجد فصيام ثلاثة ايام ذالك کفارة ايمانکم ))[27]

٨ - ((او عدل ذالك صيام ليذوق و بال امره ))[28].

يوځای په سورت مجادله کې ذکر ده.

٩ - (( فمن لم يجد فصيام شهرين متتابعين من قبل ان يتاماسا ))[29].

يو ځای په سورت مريم کې ذکر ده.

(( فقولی انی نذرت للرحمن صوما فلن اکلم اليوم انسيا ))[30].

---

21 - سورة البقرة: ١٨٣.
22 - سورة البقرة ١٨٧.
23 - سورة البقرة ١٨٧.
24 - سورة البقرة ١٩۶.
25 - سورة البقرة ١٩۶.
26 - سورة النساء ٩٢.
27 - سورة المائدة ٨٩.
28 - سورة المائدة ٩۵.
29 - سور' المجادلة ۴.
30 - سورة مريم ٣۶.

په پورتنیو آّیاتونو کې دا هم ملاحظه کیږي چې پرته د وروستني آّیت څخه ( په سورت مریم کې ( د روژې ګ نور ټول ذکر په مدني سورتونو کې شوی دی.

همدغه رازد( الصائمین او الصائمات ) په صیغه سره د روژې ګ ذکر په قرآّنکریم کې دوه ځای راغلی دی چې دواړه د سورت الاحزاب په یو آّیت کې دی:

۱۱ – ۱۲ – (( والصائمین والصائمات ))[31].

او د ( فیلصمه ) په لفظ سره یو ځای په سورت البقرة کې د روژې ګ ذکر شوی دی.

۱۳ – (( ⌶⌧☺⬧⬚ ⌧⑨✐✍⌧✸ ✍⬉♓⌹✡♑✌ ✁✍♏✩☉✍❷♦ ⬚⬧⑩⬚◆✇⬆☺⇧❍⬅ ))[32]

چې په عامه توګه تقریبا په قرآّن کریم کې د روژې ګ ذکر په صریح ډول دیارلس ځلې شوی دی. په قرآّنکریم کې د روژې ګ ګڼ شمیر احکام راغلي دي لکه د روژې ګ د اوږدوالي وخت ( د کوم وخت څخه تر کوم وخت پورې ) د روژې ګ د قضاء او کفارې احکام او داسې نور چې دا ټول په دې خبره دلالت کوي چې روژه په اسلام کې خورا لوړ مقام او پوره ارزښت لري، همدغه راز هغه څوك چې روژه نیسي د هغوی ذکر په قرآّنکریم کې په صریح ډول راغلی دی او د تفسیر عالمانو د روژې ګ په هکله د ذکر شوو مبارکو آّیاتونو لاندې په خپلو تفسیرونو کې ګڼ شمیر پاڼې ډکې کړې دي چې د روژې ګ په وړاندې ورځخه د اسلام او مسلمانانو پوره اهتمام څرګندیږي.

**ب: روژه د پیغمبر صلی الله علیه وسلم په پاکو سنتوکې:**

د پیغمبر صلی الله علیه وسلم څخه د روژې ګ د ښیګړو په هکله ګڼ شمیر روایات نقل شوي دي چې د هغې ځینې مهمو برخو ته به په لاندې توګه اشاره وکړو.

**۱- روژه د اسلام د ارکانو څخه یو رکن شمیرل کیږي:**

امام بخاري په خپل صحیح کتاب کې په خپل سند سره د پیغمبر صلی الله علیه وسلم څخه روایت کوي چې: جاء رجل الی رسول الله صلی الله علیه وسلم من

[31] - سورة الاحزاب ۳۵.
[32] - سورة البقرة ۱۸۵.

اهل نجد ثائر الراس يسمع صوته ولا يفقه مايقول, حتى دنا فاذا هو يسئل عن الاسلام, فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم: خمس صلوات في اليوم والليلة: فقال: هل على غيره ؟ قال: لا، الا ان تطوع قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: وصيام رمضان قال هل على غيره ؟ قال: لا، الا ان تطوع.[33].

**ژباړه:** رسول الله صلى الله عليه وسلم ته د نجد د خلکو څخه يو ببر سرى راغى چې د اواز انګازه يې اوريدل کيده خو څوك وربانديې نه پوهيدل تر څو چې نږدې شو معلوم شو چې د اسلام په هکله پوښتنه کوي. رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل: چې پنځه لمونځونه په ورځ او شپه کې, هغه سړي وويل: نور رابانديې فرض شته ؟ نو رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته فرمايل چې نه ( يه ) مګر که چيرته د خپلي خوښې ( نفلي ) لمونځ کوي . رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې: هو! روژه د رمضان . بيا هغه سړي وويل چې د رمضان څخه پرته نوره روژه رابانديې فرض شته ؟ رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل چې: نه ( يه ) مګر دخپلې خوښې ( نفلي ) روژه ( که نيسې).

۲ – د روژې ګ اجر الله پاك په خپله ورکوي او د روژه ګ نيوونکي د خولې بوى د الله پاك په نزد د مشکو د بوى څخه غوره دى.

د حضرت ابو هريره رضى الله تعالى عنه څخه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي: (( الصيام جنة, فلايرفث ولايجهل. و ان امرړ قاتله او شاتمه فليقل: اني صائم مرتين والذي نفسي بيده لخلوف فم الصايم اطيب عندالله من ريح المسك, يترك طعامه وشرابه وشهوته من اجلى, الصيام لى و انا اجزي به و الحسنة بعشرة امثالها)). [34]

**ژباړه:** روژه د اور په وړاندې سپر دى، روژه نيونکى دې سپکې او بې باکه خبرې نه کوي او که څوك ورسره جنګ کوي او يا ورته ښکنځلې کوي نو دوه ځله دې ورته ووايي چې زه

---

[33] جزګـء من حديث صحيح البخاري بشرح فتح الباري ۱/ ۱۰۶ طبع: بيروت. په ديګ معني حديث صحيح امام مسلم, ابو داود, ترمذي شريف, نسايي‌ګ شريف, ابن ماجه, دارمي, موطا امام مالك او مسند امام احمد کيګ هم ذکر دي.

[34] صحيح الامام البخاري بشرح فتح الباري ۴ / ۱۰۳ طبع: بيروت.

په ديګ معنا حديث په مسلم شريف، موطا د امام مالك, نسايي او مسند د امام محمد کيګ هم ذکر دى.

روژه یم, بیا پیغمبر صلی الله علیه وسلم وفرمایل: او قسم مې دې په هغه ذات وي چې زما نفس دهغه په ( بلا کیف ) لاس کې دی چې د روژه نیوونکي د خولې بوی د الله په نزد د مشکو له بوی څخه غوره دی. ( الله پاك وایي) زما د ویرې له امله یې ډوډی, څښاك او شهوت (جنسي خوند ) پرېښې دی, روژه زما لپاره ده او زه د هغې ثواب ورکوم او د یوې نیکۍ بدله به یو په لس ورکوم.

ټول عملونه او عبادتونه د الله جل جلاله لپاره دي او د الله په امر یې اجر او ثواب ورکول کیږي مګر د روژې ګ نسبت ځکه الله پاك خپل ځان ته وکړ چې روژه ځانګړې ارزښت لري ځکه چې په روژه کې ریاء نه راځي لکه په همدې معنی باندې یو حدیث شریف هم موجود دی.[35].

۳ – روژه نیوونکي به په یوې ځانګړې دروازې جنت ته داخلیږي:

امام بخاري په خپل صحیح کتاب کې په خپل سند سره د پیغمبر صلی الله علیه وسلم څخه روایت کړی دی چې هغه مبارك فرمایلي دي: ((ان في الجنة بابا یقال له الریان یدخل منه الصائمون یوم القیامة لایدخل منه احد غیرهم یقال:این الصائمون؟ فیقومون, لایدخل منه احد غیرهم فاذا دخلوا اغلق, فلم یدخل منه احد)) [36].

**ژباړه:** یقینا په جنت کې یوه دروازه ده چې ریان بللی شي دهغې څخه به د قیامت په ورځ یوازې روژه نیوونکي جنت ته ننوزي,غږ به وشي: روژه نیوونکي چیرته دي؟ نو هغوی ( روژه نیوونکي) به ودریږي پس کله چې روژه نیوونکي جنت ته داخل شي نو هغه د روازه به وتړل شي او د هغې وروسته به ورڅخه څوك داخل نه شي.

۴ – څوك چې د رمضان روژه د ایماني غوښتنې او اجر لپاره ونیسي- مخکینې ګناهونه به ورته وبښل شي.د حضرت ابوهریره رضی الله عنه څخه روایت دی چې پیغمبر صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي:

35 ـ فتح الباري شرح صحیح البخاري ۴ / ۱۰۶ طبع: بیروت.
36 ـ صحیح البخاري بشرح فتح الباري ۴ / ۱۱۰ طبع: بیروت. و صحیح مسلم بشرح النووي ۸ / ۳۲ طبع: دار الفکربیروت.

(( من قام ليلة القدر ايمانا و احتسابا غفر له ما تقدم من ذنبه, و من صام رمضان ايمانا و احتسابا غفرله ما تقدم من ذنبه )) [37].

ژباړه: هغه څوك چې د ايمان او اجر له امله د قدر شپه ويښه كړي (عبادت پكې وكړي ) مخكينې گناهونه به يې ورته وبښل شي او هغه څوك چې د رمضان روژه د ايمان د غوښتنې او اجر له امله ونيسي مخكينې گناهونه به يې ورته وبښل شي.

**۵ _ د روژه نيوونكي لپاره دوه خوشحالۍ دي:**

امام بخاري په خپل كتاب كې د سند سره ذكر كړي دي: (( للصائم فرحتان يفرحهما: اذا افطر فرح و اذا لقي ربه فرح بصومه ))[38].

ژباړه: د روژه نيوونكي لپاره دوه خوشالۍ دي چې هغه خوشحاله كوي: كله چې ماښام روژه ماته كړي نو خوشحاله شي او كله چې د الله پاك سره مخ شي نو بيا په خپله روژه خوشحاله وي.

**٦ – روژه د جنسي شهوت د ارامولو لپاره وسيله ده:**

هغه څوك چې د نكاح لپاره مال او دولت نه لري او د جنسي۔ ناوړه غريزې له پلوه په ځان ويريږي چې په حرامو كې واقع نه شي نو دهغه بايد د شهوت سكون او ارامولي لپاره روژه ونيسي لكه چې زمونږ د گران پيغمبر صلى الله عليه وسلم څخه همدا خبره نقل شوې ده او امام بخاري د همدې خبرې لپاره په خپل صحيح كتاب كې باب تړلی دی.[39].

حافظ ابن حجر عسقلاني رحمه الله تعالى د همدغه باب د لمړي حديث لاندې داسې مطلب ليكي چې: د دې خبرې مطلب خو دا دی چې روژه د نكاح شهوت له منځه وړونكې ده دلته اعتراض دا واردېږي چې روژه خو د گرموالي او حرارت زياتوونكې ده چې په هغې سره شهوت را پارېږي خو جواب دا دی چې په لږ وخت كې همداسې وي خو كله چې روژې گ ته دوام وركړي او څه وخت تير شي نو آرام شي.[40].

**۷ - د روژه نيوونكي دعا نه رد كيږي:**

---

37 ـ صحيح البخاري بشرح فتح الباري ۴ / ۱۱۵

38 ـ صحيح البخاري بشرح فتح الباري ۴ / 118 طبع: بيروت.و صحيح مسلم بشرح النووي ۸ / ۲۱ طبع: دارالفكر بيروت.

39 ـ صحيح البخاري بشرح فتح الباري ۴ / ۱۱۹ طبع: بيروت.

40 ـ فتح الباري ۴ / ۱۱۹ طبع: بيروت.

د حضرت ابوهريره رضى الله عنه څخه روايت دى چې پيغمبر صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي: (( ثلاثة لا ترد دعوتهم: الامام العادل, والصائم حتى يفطر و دعوة المظلوم... )). [41].

ترجمه: د درې کسانو دعا نه رد کيږي: عادل پاچا, روژه نيوونکي ترڅو چې روژه ماته کړي او د مظلوم.

**٨ - د هغه چا اجر چې په جهاد کې يوه ورځ روژه شي:**

جهاد چې د خورا مهمو عبادتونو څخه ګڼل کيږي که څوك د هغه سر بيره روژه هم شي نو هغه ډير زيات اجر او ثواب لري. د ابوسعيد الخدري رضى الله تعالى عنه څخه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي (( مامن عبد يصوم يوما في سبيل الله الا باعد الله بذلك اليوم وجهه عن النار سبعين خريفا )) [42].

ژباړه: هر بنده چې روژه نيسي في سبيل الله ( د الله د دين د لوړوالي لپاره په غزا کې )، الله پاك به د هغه بنده مخ د اور څخه د اويا کلونو په مسافه لرې کړي.

حضرت امام نووي د خريف معنى په کال سره کړې ده. [43].

**ج_د روژې ګ نوري ګټې:** روژه د اخروي ګټو سربيره دنيوي ګڼ شمير ښيګړې هم لري چې په لاندې توګه ورته په لنډ ډول اشاره کوو:

**١_د روژې ګ روحي ګټې:** روژه د انسان روح تصفيه کوي او هغه ته صبر, قوت او استقامت وربښي، د روژې ګ د روا والي خورا ارزښتناك حکمت د نفس او روح تزکيه ده د روژې ګ په واسطه کولای شو چې په نفس باندې غلبه حاصله کړو او په نفس باندې غلبه حاصلول او هغه په قابو کې راوستل او الهي حکومت او قانون ته د هغه چمتو کول او برابرول په اسلام کې د انسان څخه يوه حتمي او ضروري غوښتنه ده.

41 - سنن ابن ماجه ١ / ٥٥٧ حقق نصوصه الاستاذ محمد فواد عبد الباقي.
42 - صحيح مسلم بشرح الامام النووي ٨ / ٣٣ طبع: دار البيروت.
43 - شرح مسلم للامام النووي ٨ / ٣٣٨ طبع: دار الفکر.

محدث دهلوی حضرت شاه ولی الله رحمه الله تعالی په خپل کتاب حجة الله البالغه کې ليکي: وان الصوم شرع لقهر النفس, كما قال الله تعالى, لعلكم تتقون و كما قال النبي صلى الله عليه وسلم: فان الصوم له وجاء. [44].

**يعنی:** روژه پرنفس باندې د غلبې لپاره روا شوې ده لکه الله پاك چې فرمايلي دي: لعلكم تتقون.( ښايي چې تاسې به پرهيز گاره شئ). او لکه څنګه چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي: فان الصوم له وجاء (يقينا روژه د هغه چا لپاره چې جنسي غريزه او شهوت لري او د نکاح قوت نه لري د ناوړه شهوت له منځه وړونکې ده).

د روح د تربيت لپاره په روژه کې يو لړ نور مقررات هم ايښودل شوي دي لکه بيهوده او سپکو خبرونه ځان ساتل چې د رمضان د ښيګړو په وخت په دې هکله يو صحيح حديث بيان شو.

شاه ولي الله رحمه الله تعالى په خپل کتاب حجة الله البالغه کې ليکي: يوه پوره اوصحيح روژه هغه ده چې د ځيروونکو حيواناتو (ځناورو ) د خويونو او شيطاني ناوړه شهواني اقوالو او افعالو څخه پکې هم ځان وژغوري ځکه چې دغسې افعال او اقوال نفس ته بد او ناوړه اخلاق او خويونه وريادوي او فاسدو کارونو ته يې راباسي.

همدغه راز شاه صاحب په انسان کې د ځناورو خويونه د ذليله کولو لپاره روژه بهترينه وسيله ښودلې ده او دايې په ډاګه کړې ده چې په روژه باندې انسان د حيواني صفاتو څخه ملکي ( د فرشتو ) صفاتو ته راګرځي. [45]

علامه ابن الهمام په فتح القدير کې په دې معنی ليکلي دي: الله پاك روژه د ګڼ شمير ګټو لپاره روا کړې ده چې د هغې د ډيرو غټو ګټو څخه يوه دا ده چې په بدو باندې امر کوونکی نفس اراموي او کنترولوي يې. [46].

44 ـ حجة الله البالغة ١/ ٢٨ طبع: داراحياء العلوم.
45 ـ حجة الله البالغة ٢ / ١٢٥ طبع: داراحياء العلوم.

46 ـ فتح القدير شرح الهداية ٢ / ٢٣٣ طبع: كويتگه باكستان ( المكتبه الرشيديه.

۲ – د روژې ګ طبي او جسمي ګټې: روژه د روحي ګټو سربیره یو لړ طبي او جسمي ګټې هم لري چې انسان کولای شي د ډېرو ناوړه مرضونو څخه د روژې ګ په واسطه علاج ومومي.

دا په تجربې سره ثابته ده چې زیات خوراك انسان ته ضرر رسوي او د مرضونو سبب ګرځي، روژه انسان د لږ خوراك سره عادت کوي او په دې توګه د یو شمیر مرضونو څخه خلاصیږي.

زیات خوراك د انسان د غټوالي او چاغښت سبب ګرځي چې په هغې سره بیا د کار بیداري او ویښتیا بایلي او د دې سر بیره په ظاهري بڼه کې یې هم یو ډول منفي بدلون راځي لکه ګیډه یې دومره غټه شي چې بده ورسره ښکاري, خوب به ورته زیات ورځي او د بدن غړي به یې زیات استراحت ته اړتیا پیدا کوي ځکه چې بدن د زیاتې ډوډۍ هضم په اسانۍ سره نه شي کولی او د زیات خوراك په صورت کې زیات استراحت ته ضروت لري او که نه نو بیا به یو ډول ستړیا محسوسوي.

مسلمانو ډاکترانو په دې هکله لیکنې هم کړې دي او د زیاتومعلوماتو لپاره باید هغو ته مراجعه وشي دلته مونږ هغه خبرې ذکر کړې چې د روژې ګ د ښیګړو په حیث پکې څوك اختلاف نه لري.

۳ـد روژې ګ ټولنیزې ګټې: روژه د مسلمانانو په منځ کې د یووالي روحیه ژوندۍ ساتي. بډای او فقیر, شتمن او ګدا, ښځینه او نارینه, غلام او آزاد ټول د یو الله لپاره په یو وخت د خوراك, څښاك او جماع څخه په ځان باندې بندیز لګوي او بیا په یو وخت کوم چې ورته الله پاك ټاکلی دی روژه ماتوي.

د دې څخه معلومیږي چې روژه هم یو د هغو عبادتونو څخه ده چې د یووالي او ټولنیزې برابرې رمز او راز پکې پروت دي.

شتمن خلك د روژې ګ په واسطه د خپل ځان سره فکر کوي چې څوورځې د خوراك او څښاك نه کول یو څه صبر او زغم ته اړتیا لري نو ټول عمر او یا زیات وخت د ناداري له امله خوراك او څښاك نه کول او یا په خپل وخت د خوراك لاس ته نه راوړل بیخي ګران کار دی نو په دې توګه پکې د مهربانۍ جذبه را پورته کیږي او د فقیرانو او نادارو خلکو مرستې او کمك ته چمتو کیږي.

علامه ابن الهمام په فتح القدیر کې په دې معنـا لـیکلي دي چـې: د روژې ګ د ډېرو غټو ګټو څخه داهم ده چې روژه په فقیرانـو او مسـکینانو بانـدې د مهربـانۍ او شفقت وسیله ده ځکه چې شتمن خلك ځینې وخت د لوږې درد محسوس کړي نـو د فقیرانو او نادارو خلکو ژوند ورته معلوم شي نو د هغوی مرستې ته بیا اقدام کـوي ځکه چې د رحم حقیقت په انسان کې یو ډول داخلي درد دی چې انسان د فقیرانو سره احسان کولو اړباسي.[47]

که چیرته د نړۍ شتمن مسلمانان په کال کې څو روژې ګ ونیسي ـ نـو د دنیـا د غریبـو مسـلمانانو لپـاره د شـتمنو د همـدغو ورځـو پـاتې ډوډۍ چـې دروژې ګ پـه واسطه یې نه ده خوړلې د ډیر وخت لپاره بس کیږي چې داهم د ټولنیزو ستونزو پـه حل کولو کې د روژې ګ د ښیګړو څخه شمیرلی شو.

او که چیرته مسلمانان په جهاد کـې مشـغول شي کـولای شي د هغـه عـادت پـه مرسته چې د روژې ګ نیولو په اساس ورته حاصل شوی دی د دوه وختونو په ځـای یو وخت ډوډۍ باندې بسوالی وکړي او په دې توګه خپل اقتصادي مشکل یا حـل او یا یې لږ کړي.

د روژې ډولونه:[48]

1 – فرض: لکه د رمضان د میاشتې، د رمضان د میاشتې قضاء ( کـه د چـا څخـه قضاء شوې وي ) د ظهار، قتل خطـاء، د قسـم او جـزاء او د احـرام پـه حالـت کـې د ښکار کولو کفارې.

۲ – واجب: لکه څوك چې په ځان باندې یوه یا څو ورځې روژه نذر کړي.

۳ – سنت مو کد: لکه د عاشورا د ورځې روژه په دې شرط چـې د نهمـې ورځـې روژه هم ورسره ونیسي.

۴ – سـنت ( مسـتحب ): لکـه د هـرې میاشـتې درې ګ ورځـې ګ روژه نیـول ( مستحب دا ده چـې دا درې ګ ورځـې ګ د بـیض یعنـې د میاشـتې د مـنځ څخـه

[47] ـ فتح القدیر شرح الهدایه ۲ / ۲۳۳ طبع: المکتبه الرشیدیه کویته پاکستان.
[48] ـ د روژیګ أولونه مو د علامه ابن الهمام د کتاب فتح القدیر څګخه په استفاده سره ولیکل کیدای شي ۲ / ۲۳۵ هغیګ ته مراجعه وکؤل شي.

درې  هغه ورځې وي چې سپوږمۍ پکې د نورو ټولو شپو څخه روښانه وي ) او همدغه راز ټولې هغه روژې گ چې د پیغمبر صلی الله علیه وسلم په مبارکو سنتو کې ثابتې وي او یایې په غوره والي باندې د ثواب ورکولو وعده موجوده وي او یا یې په سنتو کې صفت راغلی وي لکه د حضرت داود علیه السلام روژه ( هغه به یوه ورځ روژه نیوله او یوه ورځ به یې نه نیوله ).

۵ – نفل: هغه روژه چې د پورتنیو ذکر شوو څخه نه وي او په شریعت کې ورڅخه منع نه وي راغلې.

٦ – مکروه تنزیهي: لکه د عاشورا د ورځې گ  روژه چې یو ورځ مخکې یا وروسته روژه ورسره ونه نیسي.

۷ – مکروه تحریمي: لکه د اخترونو روژه نیول او د تشریق د ورځو ( دلوی اختر څخه وروسته درې  ورځې گ  ) روژه نیول.

# دوهم فصل

# دروژې گ احکام

دروژې گ سبب: لکه څرنگه مو چې مخکې ذکر کړل روژه په څو ډوله ده همدغه راز د روژې گ هر ډول ځانته خپل سبب لري. په نظري روژه کې سبب نذر، دکفاراتو په روژه کې یې هم جدا اسباب دي لکه په قسم خوړلو کې حنث،قتل خطا او داسې نور، دقضا روژې گ سبب وجوب د اداء اود رمضان روژې گ سبب د رمضان د میاشتې د یوې برخې ( لکه د ورځې د یو ې برخې) موجودیت دی.[49]

دروژې گ د فرضیت شرطونه: روژه په هر عاقل بالغ مسلمان باندې فرض ده.

پرته د مهلت د روژې گ د اداء کولو دفرضیت شرط:

دروژې د اداء د فرضیت شرطونه صحت ( چې ناجوړه نه وي) او اقامت (چې مسافر نه وي) دي.

د روژې گ د صحت شرط: د روژې گ د صحیح والي شرط طهارت ( چې حایضه او نفاسه نه وي ) او نیت دی ( پرته د نیت څخه نه صحیح کیږي).

همدغه راز مناسب ده د روژې گ د فرضیت د شرطونو څخه د روژې گ په واجب والي پوه هم وي یعنې په دې پوه وي چې روژه واجب ده دا مطلب په فتح القدیر کې واضح شوېدی.[50]

د روژې گ نیت: نیت په روژه کې شرط دی او پرته له نیت څخه د روژې گ نیول هم صحیح نه دي.[51]

د نیت محل (ځای) زړه دی او یوازې په ژبه باندې اکتفاء صحیح نه ده, که په ژبه یې نیت ونه وایه خو په زړه کې یې دا وه چې سبا به روژه کیږي صحیح ده ځکه چې اصلا د نیت معنی قصد ده چې ځای یې زړه دی.

[49] -دا مطلب د فتح القدیر 231/2 خگخه په استفاده ولیکل شو.
[50]- د شرطونو تگول أولونه د فتح القدیر 234/2 خگخه نقل شو.
51- البدایع 83/2

د نیت وخت: دلاندې روژو لپاره د شپې له پلوه نیت کول ضروري دي. د رمضـان قضا ،د نفلي روژې گ قضاء (یعنې چې نفلي روژه یې نیولې وي بیا یې ماته کړې او قِضایې وربandې پاتې وي )، د نذر مطلق روژه او د کفاراتو روژې گ.

دلاندې روژو لپاره د شپې له پلوه نیت ضروري نه دی:

د رمضان روژه، هغه نذر چې وخت یې ټاکلی وي، مستحب او نفـلي روژه چـې د ورځې دنیمایي څخه مخکې د لوی څانبت پورې یې هم نیت صحیح کیـږي. غـوره خو دا ده چې د پورتنیو روژو لپاره هم د شپې لـه پلـوه یـا د سـبا ختلـو سره جوخـت نیت وشي خو که چیرته د سبا ختلو وروسته د غرمې پورې د ماسپښین داخلیـدو نـه مخکې یې نیت وکړ هم صحیح کیږي[52]

په حنفي مذهب کې د میاشتې لیدلو تفصیل په لاندې توگه دی[53]

که چیرته اسمان صفا وي نو بیـا خـو د رمضـان او اخـتر لپـاره لازم دي چـې ډیـر خلك یاغېږ ټولی میاشت وگوري.د غـټ ټـولي ( ډیـرو خلکـو ) انـدازه هغـه ده چـې غالب گمان ورباندې راشي او په صحیح روایت کـې یـې شـمیره امـام (د مسـلمانانو مشر) ته حواله ده، خو که اسمان خړپړ و بیا به امام ( د مسلمانانو مشر ) په یو کـس بانـدې چــې عـادل، عاقـل او بـالغ وي اکتفـاء وکـړي، یعنــې د یـو کـس شـهادت منظوریږي.

عادل هغه دی چې په بدیو یې نیکي زیاتې وي په همدې ډول د ښځې او غـلام شهادت په دې هکله صحیح دی.

شهادت په شهادت هم صحیح کیږي، لکه د قاضي په مخکـې یـو کـس ووایـي چـې زه گواهي ورکوم چې فلاني د میاشتې په لیدو گواهي ورکړه.

که یو سړي گواهي ورکړه خو د مسلمانانو خلیفه یې گواهي ونه منلـه د میاشـتې په لیدونکي روژه یوازې لازمیږي او که روژه یې ماتـه کـړه قضـاء وربانـدې ضروري ده خو کفاره ورباندې نشته.

### د روژې د میاشتې لیدل:

[52] الفقه الاسلامی و ادلته 619/2.

[53] الفقه الاسلامی 599/2 په دیگ هکله دیگ مراقي الفلاح ص 108 او اللباب 464/1 ته هم مراجعه وشي.

په کفايي توګه واجب دي چې د شعبان (برات) د میاشتې په نه ویشتمه(29) د میاشتې د لیدو څارنه وکړي خو که چیرته اسمان خړ پړ او وریځ و نو بیا به د شعبان (برات) د میاشتې دیرش ورځې پوره کړي.

د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي (( الشهر تسع و عشرون لیله فلا تصوموا حتی تروه فان غم علیکم فاکملوا العده ثلاثین)) [54]

**ژباړه:** میاشت نهه ویشت شپې وي (لږ تر لږه ) تاسې روژه مه نیسئ تر څو یې ونه وینئ که چیرته په تاسې باندې هواخړه شوه نو د برات د میاشتې دیرش پوره کړئ ( او بیا روژه ونیسئ ) په یو بل حدیث شریف کې چې امام بخاري روایت کړی دی پیغمبر صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي ( صوموا لرړیته و افطروا لرړیته ) یعنې د میاشتې په لیدو سره روژه ونیسئ۔ او دمیاشتې په لیدو سره اختر کړئ. په ظاهر مذهب کې د میاشتې د تل ځای توپیر اعتبار نه لري, په دې معنی که چیرته په یو ملك کې میاشت ولیدل شوه او د بل ملك خلك ورڅخه خبر شوه نو دهغوی لپاره هم لازم دي چې د هغوی سره روژه ونیسي او په اختر کې ورسره اختر کړي.

که څه هم ځنې فقهاء دمطالعو اختلاف معتبر بولي په هر صورت دا یوه اختلافي مسئله ده چې جنجال پکې په کار نه دی, د ملك مسلمان مشر۔ چې څه پریکړه وکړه صحیح ده. والله اعلم.

**د شکي ورځې روژه:** د شك ورځ د شعبان ( برات ) د میاشتې دیرشمه ورځ وي. دا چې قمري میاشتې ځنې دیرش او ځنې نه ویشت وي نو د اسمان د خړوالي له امله خلك په شك کې وغورځیږي چې ایا دا ورځ به د شعبان وروستۍ ورځ وي او که د رمضان لومړۍ؟ خو که چیرته اسمان شین او روښانه ( او بیا هم د رمضان میاشت ونه لیدل شوه) نو بیا د شك ورځ نده بلکې د شعبان وروستۍ ورځ ده.[55]

**د شکي روژې ګ حکم:** د شکي ورځې روژه مکروه ده یعنې پدې ورځ روژه نیول شرعاً روا نه ده. خو که پرته له شك څخه ځوك په یقیني توګه د نفلي روژې ګ نیت وکړي له مکروه والي پرته صحیح کیږي.

54 صحیح البخاري بشرح فتح الباري 119/4
55 دا مطلب په فتح القدیر 53/1 او درالمختار 119/2 کیګ ذکر دی

همدا ډول که چیرته څوك دعادت له مخې د ځینې ورځو روژې ګ نیسي لکه د دوشنبې او پنجشنبې روژې ګ او د شکي ورځې سره تصادف وکړي په اتفاق سره دا روژه مکروه نه ده.[56]

لاندې روژې ګ نیول تحریمي مکروه دي[57]

١-دکوچني اختر روژه. ٢-د لوی اختر روژه.

٣-د تشریق د ورځو روژې ګ (دلوی اختر نه د درې وروستیو ورځو روژه )

۴- د شك د ورځې روژه ( تفصیل یې مخکې تیر شو.)

که چیرته په نوموړو ورځو کې روژه ونیول شي نو نیوونکیې ګناهګار دی. او که په دې ورځو کې یې روژه ونیوله او بیا یې ماته کړه نوقضاء وربانديې نشته.

**لاندې روژې ګ نیول تنزیهي مکروه (خلاف اولی) دي** [58]

١-یوازې د عاشورا د ورځې روژه نیول چې د نهمې او یا یوولسمې ورځې روژه ورسره ونه نیسي.ګ

٢-یوازې د جمعې د ورځې روژه.

٣-یوازې د شنبې (خالي) د ورځې روژه.

۴-د نوروز په ورځ روژه ( ځکه چې په دې کې د دې ورځې تعظیم رانه شي او د مجوسیانو سره خلاف وشي).

۵- د مهرجان د ورځې روژه ( د مني اوله ورځ ) په دې کې هم کافرانو سره د ورته والي په خاطر مکروه ده ).

٦- ټول عمر روژه.

٧-د وصال روژه ( چې روژه شي او ماښام کې روژه ماته نکړي او سبا ورځ هم روژه شي ).

٨-دمسافر روژه هم مکروه ده (که چیرته روژې ګ په تکلیف کې اچولو).

٩- د ښځې نفلي روژه چې د څښتن اجازه ورته نه وي شوې, خوپه هغه صورت کې مکروه نه ده چې څښتن یې مریض, روژه او یا د حج او عمرې په احرام کې وي.

56 الفقه الا سلامي وادلته 580/2
57 الفقه الاسلامي و ادلته 584/2
58 الفقه الاسلامي و ادلته 584/2 - 585

**سنت روژه:**

د عاشورا د ورځې روژه په داسې حال کې سنت ده چې د نهمې ورځې روژه هم ورسره ونیول شي.

**د لاندې ورځو روژې ګ نیول مستحب دي:**

۱- د هرې میاشتې د دیارلسمې, څوارلسمې او پنځلسمې نیټې روژه.

۲- د دوشنبې او پنجشنبې روژه.

۳- د شوال میاشتې د شپږو ورځو روژه ( که پرله پسې وي او که بیلې, صحیح کیږي).

**۴- د عرفې د ورځې روژه.**

۵- د ټولو هغو ورځو روژې ګ چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه پکې حدیث راغلی وي لکه د داود علیه السلام روژه ( هغه په یوه ورځ پس روژه کیدل ).

**ځنې هغه روژې ګ چې د غوره والي په هکله یې احادیث راغلي دي:**

**۱- د محرم دمیاشتې روژه:**

په دې هکله د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه روایت دی چې:

(( افضل الصیام بعد رمضان شهرالمحرم و افضل الصلاه بعد الفریضه صلاه اللیل ))

**ژباړه**: د رمضان د میاشتې څخه وروسته غوره روژه د محرم (امامانو) د میاشتې روژه ده, او د فرضي لمانځه وروسته غوره لمونځ د شپې لمونځ دی.

**۲- د عاشورا د ورځې روژه:**

مخکې د دې په هکله بیان شو چې د عاشورا د ورځې روژه نیول سنت دي. په حدیث شریف کې راغلي دي.

(( صیام یوم عاشورا اني احتسب علی الله ان یکفر السنه التي قبله)).

ژباړه: د عاشورا د ورځې روژه داسې ګنم چې الله پاك به پرې د تیر كال (کوچنې),ګناهونه معاف کړي.

په بل حدیث شریف کې راغلي دي:

((صوموا یوم عاشورا و خالفوا الیهود و صوموا قبله یوماً او بعده یوماً).

**ژباړه:** د عاشورا ورځ روژه ونیسئ او د یهودانو سره مخالفت وکړئ ( په داسې توګه چې ) د عاشورا نه یو ورځ مخکې او یا وروسته هم روژه شئ ( او یوازې دعاشورا روژه چې د نهمې یا یوولسمې روژه نه شي خلاف اولی ده ).

**۳- د رجب د میاشتې روژه:**

حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما څخه په دې هکله روایت دی چې:(( کان رسول الله صلی الله علیه وسلم یصوم حتی نقول لایفطر و یفطر حتی نقول لایصوم))

ژباړه: د رسول الله صلی الله علیه وسلم حالت داسې و چې ( کله به یې د رجب میاشت) روژه داسې ټینګه نیوله چې مونږ به ویل هیڅ یې نه ماتوي او ( کله به یې داسې) ماتوله چې مونږ به ویل هیڅ یې نه نیسي.

مطلب دا چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د رجب میاشتې روژه کله نیوله او کله به یې نه نیوله، نو که څوك وکولای شي او د رجب روژه ونیسي ډیر اجر به یې ګټلی وي.

**۴- د شعبان (برات) د میاشتې روژه:**

د حضرت عائشه رضی الله عنها څخه روایت دی چې: ( مارآیت رسول الله صلی الله علیه وسلم استکمل صیام شهر غیر رمضان و ما رآیته اکثر صیاماً منه في شعبان کان یصومه الا قلیلاً بل کان یصومه کله).

**ژباړه:** ما رسول الله صلی الله علیه وسلم نه دی لیدلی چې د رمضان میاشت څخه پرته بله میاشت پوره روژه شوی وي او ما نه دی لیدلی چې دشعبان (برات) څخه په بله کې زیات روژه کیده( په برات کې به زیات روژه کیده) د برات روژه به یې نیوله ټوله میاشت به روژه و یعنې رسول الله صلی الله علیه وسلم به دلږو ورځوپرته د شعبان (برات) ټوله میاشت روژه و.

**۵- د شوال ( واړه اختر) د میاشتې شپږ روژې:**

د دې بیان مخکې هم په لنډه توګه تیر شو.

په حدیث شریف کې راغلي دي چې:

( من صام رمضان ثم اتبعه ستاً من شوال فکاَنما صام الدهر)

څوك چې د رمضان روژه ونیسي او بیا ورپسې د شوال (واړه اختر) میاشتې شپږ روژې ګ ونیسي ( دومره اجر لري) لكه ټول عمر یې چې روژې ګ نیولې وي.
غوره خبره دا ده چې د واړه اختر د ورځې وروسته پرله پسې ونیول شي، خو كه پرله پسې ونه نیول شي هم صحیح كیږي.
همدغه راز د ذی الحجې د میاشتې لمړنی نه (۹) ورځې روژې ګ ، یو ورځ پس روژې ګ ، د مجرد انسان روژې ګ ، دهرې میاشتې درې روژې، د هرې میاشتې د دیارلسم، څوارلسم او پنځلسم تاریخ روژې مستحب او په احادیثو كې یې ثبوت راغلی دی.

**د روژې ركن:**

د ګیډې او فرج د شهوتونو څخه لاس نیونه د روژې ركن دی.
یا په بل عبارت د خوراك، څښاك او جماع نه كول د روژې ګ ركن دی او په یو بل تعبیر ویلای شو چې: د روژې ګ ماتوونكو شیانو څخه لاس نیونه د روژې ګ ركن دی.

**د روژې ګ وخت:** د سبا ختلو سره پیل او ماښام (لمرپریواته ) پورې ختمیږي.

**د روژې ګ سنتونه او ادبونه:**

۱ – پیشمنی ( السحور)
په حدیث شریف كې راغلي دي:
( تسحروا فان فی السحور بركه)
**ژباړه:** پیشمنی كوښه پیشمني كې بركت دی .
دغه راز د پیشنمي په هكله ګڼ شمیر حدیثونه راغلي دي، نو كه څیرته د چا اشتها نه وي چې ډوډی وخوري د سنتو په لحاظ دې لږ خوراك وكړي.
په پیشنمي كې مستحب دا ده چې د شپې د ټولونه په وروستی برخه كې وشي ( چې شپږمه برخه د شپې پاتې وي ). په حدیث كې راغلي دي:
(ثلاث من اخلاق المرسلین: تعجیل الافطار، وتاخیر السحور ووضع الیمین على الشمال فی الصلاه).
ژباړه: درې شیان د رسولانو د خویونو څخه دي:

په روژه ماتي تلوار، په پیشمني کې وروسته والی او په لمانځه کې ښې لاس پر چپ ایښودل.

په نورو ګڼ شمیر حدیثونو کې هم د پیشمني وروسته والی غوره ګڼل شوی دی.

**۲ – په روژه ماتي تلوار کول:**

کله چې د ماښام داخلیدل باوري شي نو د لمانځه څخه مخکې روژه ماتسنت دی او مستحب خبره ده چې روژه ماتی په تازه خرما، خوږ څیز او یا اوبو باندې وي.

په حدیث شریف کې راغلي دي:

(لایزال الناس بخیر ما عجلوا الفطر)

ژباړه: خلك به همیش په نیکمرغي کې وي څو په روژه ماتي کې تلوار کوي.

خو که چیرته د وریځې ورځ وه نو بیا یو څه وروسته والی د احتیاط په خاطر غوره دی، په داسې حال کې چې زمونږ ګڼ مسلمانان وروڼه د وریځې په ورځ باندې تلوار کوي، بس چې سترګو ته یې د وریځې تیاره راشي فکر کوي چې ماښام شو ( دا خبره ما په څوجوماتونو کې په خپلو سترګو لیدلې ده ).

**۳- روژه ګ ماتي څخه وروسته دعاء**

د روژه ماتي په وخت کې دعاء ډیره غوره ده په حدیث شریف کې راغلي دي: ( ان للصائم عند فطره لدعوة ماترد).

ژباړه: یقیناً د روژه ماتي دعا هرو مرو نه ردکیږي.

رسول الله صلی الله علیه وسلم به چې کله روژه ماته کړه نو دا دعاء به یې فرمایله:( اللهم اني لك صمت و علی رزقك افطرت)

**ژباړه** اې الله ! خاص ستا لپاره مې روژه نیولې او ستا په روزي مې ماته کړه.

په یو حدیث شریف کې لاندې دعا راغلې ده:

( اللهم لك صمنا و علی رزقك افطرنا فتقبل منا انك انت السمیع العلیم)

**ژباړه**: اې الله ! ستا لپاره مو روژه نیولې ( ستا له ویرې مو روژه نیولې ) او ستا په روزي باندې مو ماته کړه, نو زمونږه څخه ( دعا او عبادتونه ) قبول کړه یقیناً همدا ته سمیع ( ښه اوریدونکی ) او علیم (ښه پوه) یې ,که څوك بل چا سره روژه ماتوي او یا

د هغه میلمستیا وخوري نو دا دعا سنت ده: ( افطر عندکم الصائمون و اکل طعامکم الابرار وصلت علیکم الملائکه).

**ژباړه:** روژه تیانو درسره روژه ماته کړه, ستاسې ډوډۍ نیکانو وخوړه او پرښتو درباندې درود ووایه.

نورې دعاګانې هم په حدیثو کې راغلي دي, که چا د هغې څخه هره دعا وویله صحیح ده.

**۴- روژه تیانو ته روژه ماتی برابرول:**

په حدیث شریف کې راغلي دي:

(من فطر صائماً کان له مثل اجره, غیر انه لاینقص من اجر الصائم شئ).

**ژباړه:** څوك چې روژه تي ته روژه ماتی ورکړي د روژه تي په اندازه ثواب ورکول کیږي, ( داسې هم ) نه چې د روژه تي د ثواب څخه به څه کم شي.

که د چا د لاسه ډیر څه نه کیدل یوه خرما, یو غوړپ اوبه یا بل لږ شی یې روژه تي ته وړاندې کړل هم صحیح ده که څه هم غوره خو داده چې پوره یې موړ کړي.

**۵- د دروغو سپکو او چټي خبرو او ګناهونو پرېښودل:**

په حدیث شریف کې راغلي دي:

( من لم یدع قول الزور والعمل به فلیس لله حاجة فی ان یدع طعامه و شرابه).

**ژباړه:** څوك چې دروغ ( او چټي ) خبرې او په هغو باندې عمل نه پرېږدي نو الله پاك یې خوراك او څښاك پرېښودوته اړتیانلري.

په هر وخت کې د ناوړه خبرو څخه ځان ژغورنه لازم ده خو په ځانګړي تو ګه په روژه کې باید د روژې ګ د حرمت او عزت په خاطر ډیره ژغورنه وشي ځکه چې په روژه کې ګناه کول د نورو وختونو د ګناه څخه زیاته بده خبره ده.

**یو مثال:** که چیرته یو څوك په لمانځه کې یو بد کار وکړي یا د حج مراسمو په وخت طواف کې ګناه وکړي او یا دعرفات په وخت حاجي ګناه کوي نو فکر وکړئ چې دا څومره بده خبره ده او داسې کس ته به هر څوك بد ووایي, دغه ډول روژه هم یو عبادت دی چې د روژې ګ په حالت کې ګناه کول ډیر بد دي.

د دې د ښه وضاحت لپاره ستاسی پاملرنه لاندې پیښې ته اړول غواړم.

دوه ښځې روژه وې، يوه سړي عرض وکړ چې: يا رسول الله صلى الله عليه وسلم ! دلته دوه ښځو روژه نيولې ده او نزدي دي چې د تندې څخه مړې شي، رسول الله صلى الله عليه وسلم ورڅخه مخ وگرځوه او چپ پاتې شو، هغه سړی بيا راوگرځيد او ويې ويل: اې د الله پيغمبره! قسم دی چې دواړه مړې شوې او يا خونزدې دي چې مړې شي، هغه مبارك وفرمايل: هغه دواړه (ښځې) راوبله. بيا هغه دواړه ښځې راغلې او يو لوښی هم راوړل شو، نو رسول الله صلى الله عليه وسلم يوې ته د استفراغ امر وکړ همغه و چې هغې ښځې دومره وينې زوې او غوښه قی کړه چې لوښی يې نيم ډك کړ بيايې هغې بلې ته امر وکړ هغې هم وينې، زوې او غوښه قی کړه چې لوښی يې ډك کړ، بيا رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل:( ان هاتين صامتا عما احل الله لهما و افطرتا على ما حرم الله عليهما جلست احداهما الى الاخرى فجعلتا تاكلان من لحوم الناس)

ژباړه: يقيناً دا دواړه د هغه څه څخه روژه شوې دي چې الله پاك ورته حلال کړي دي او په هغه څه يې ماته کړې ده چې الله پاك هغه ور باندې حرام کړي دي ، يوه بلې ته ناسته ده او شروع يې کړې دواړه د خلکو غوښې خوري ( د خلکو غيبت کوي).

د دې ټولو معنی دا ده چې د روژې گ د اجر حاصلولو لپاره يوازې دا بس نه ده چې د خوراك او څښاك څخه منع شي بلکې لازمه ده چې د ټولو ناوړه چارونه ژغورنه وشي، ژبه د ناپاکو خبرو، سترگې د حرام نظر او همدغه راز د بدن ټول غړي د ناوړه اعمالو څخه وساتل شي.

پدې هکله گڼ شمير حديثونه روايت شوي دي چې دلته د ټولو بيان ممکن ندی نو د بيلگې په توگه مو نوموړي حديثونه ذکر کړل.

٦- په خپل اولاد (کورنۍ) پراخي: دخپلوانو سره احسان او فقيرانو او مسکينانو سره د نور وخت په پرتله ډيرې مرستې کول د روژې گ د ادابو څخه دي.په حديث شريف کې راغلي دي چې:

( انه صلى الله عليه وسلم كان اجود الناس بالخير، و كان اجود ما يكون فى رمضان حين يلقاه جبريل).

ژباړه: يقيناً پيغمبر صلی الله عليه وسلم د ټولو خلکو څخه زيات سخي و خو په رمضان کې به ( ترټولو وختونو) ډير سخي و کله به چې ورسره جبرايل عليه السلام مخ کيده.

**7- اعتکاف:**

اعتکاف سنت او د روژې ګ مبارکې د ادابو څخه دی.چې تفصيل به يې وروسته په يو بيل بحث کې انشاء الله راشي.

**۸- د قرآنکريم زيات تلاوت کول:**

حضرت جبرايل عليه السلام به د رمضان په هره شپه کې رسول الله صلی الله عليه وسلم ته راتللو او د قرآنکريم درس به يې ورکولو.

دا مطلب د بخاري شريف او مسلم شريف په صحيح حديثو کې راغلی دی. همدغه راز په دغه مبارکه مياشت کې دشرعي علم په هکله حرص کول غوره کار دی.

**لاندې نصيحتونه هم مه هيروئ:**

د رمضان په مبارکه مياشت کې به رسول الله صلی الله عليه وسلم دنورو وختونو څخه په توپير سره په عبادتونو کې هڅه کوله او نور خلکو ته به يې هم په دې هکله ښوونې کولې او ددغې مبارکې مياشتې ارزښتونه به يې ورته بيانول چې: رمضان د برکت مياشت ده, رحمت پکې رانازليږي, ګناهونه پکې ښښل کيږي او دعاګانې پکې قبليږي او الله پاك پکې د خير په کارونو وياړي نو تاسې هم د خپل اړخ نه د الله پاك دخوښۍ لپاره نيکې چارې وکړئ, يقيناً هغه څوك بدمرغه دی چې په دغه مياشت کې د الله پاك د رحمت څخه محروم شي. ( دا مطلب امام طبراني د عباده بن صامت رضی الله تعالی عنه په روايت سره د رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه رانقل کړی دی ).

څوك چې په دې مياشت کې يو نفلي کار وکړي لکه فرض يې چې په نورو مياشتو کې اداء کړي وي, او يو فرض پکې دومره ثواب لري لکه په نورو وختونو کې يې چې اويا فرض اداء کړي وي, دا د صبر مياشت ده او د صبر ثواب جنت دی, دا د همدردۍ مياشت ده په دې کې د مومن روزي زياتيږي, چاچې پکې يو روژه تي

ته روژه ماتی تیار کړ (کوچني) گناهونه یې ښښل کیږي او د اور څخه ازادیږي په داسې حال کې چې د روژه تي د ثواب څخه هم څه نه کمیږي... دا داسې یوه میاشت ده چې لومړۍ برخه یې رحمت, منځنۍ یې مغفرت او وروستۍ برخه یې د دوزخ څخه نجات دی، چاچې پدې میاشت کې په خپل مریي ( او یا خادم ) باندې اساني وکړه الله پاك به ورته ښښنه وکړي او د اور څخه به یې ازاد کړي.

څلور شیان زیات ترسره کوئ، په دوو باندې الله پاك رضا کیږي او د دوو څخه ستاسې چاره نشته:هغه چې الله پاك ورباندې رضا کیږي د شهادت کلمه او د الله پاك څخه ښښنه غوښتل ( استغفار) دی او هغه چې ستاسې ورڅخه نه رغیږي یو د جنت سوال او بل د دوزخ څخه په الله پاك باندې پناه او نجات غوښتل دي.

او هغه څوك چه یوه روژه تي ته اوبه ورکړي نو الله پاك به هغه زما د حوض ( د پیغمبر صلی الله علیه وسلم  دحوض ) څخه خړوبه کړي اوتر هغې به تږی نه شی ترڅو جنت ته ننوزي.

پورته اوږد مطلب د حدیثو مشهور امام ابن خزیمه په خپل صحیح کتاب ( صحیح ابن خزیمه ) کې په سند سره روایت کړی دی .

## لاندې شیان په روژه کې مکروه دي:

١- پرته له عذر څخه د یو شي ژول

٢-د ژاولو ژول ( چې خوږې نه وي, که خوږې وي بیا روژه ماتوي ).

٣-د خپلې ماندینې سره غاړیوتل ,لاس وهل او مچې اخیستل په داسې حال کې چې د منیو د وتلو او یا جماع کولو ډار نه وي.

۴-په قصد سره خوله کې لاړې جمع کول او بیا یې تیرول.

۵- هغه کار چې روژه تي ضعیف کوي لکه: رگ وهل یا ښکر لگول.

## لاندې شیان په روژه کې مکروه نه دي:

۱- د خپلې ښځې مچې کول او یا ورسره یو ځای کیناستل پـه داسـې حـال کـې چې د جماع او انزال ویره ورسره نه وي.

۲-د بریتو ( اوربیرې ) غوړول.

۳-رانجه کول.

۴-رگ وهل او ښکر لگول چې روژه تي نه کمزوري کوي.

۵-مسواك وهل د ورځې په وروستۍ برخه کې( بلکې سنت دی).

٦- په خوله او پوزه کې د اوداسه څخه پرته اوبه اچول.

۷- غسل کول او په لمدو کالیو کې د سوړوالي لپاره ځان رانغښتل.

## هغه شیان چې روژه خوړل روا کوي:

### ۱-سفر:

سفر په اتفاق سره د روژې گ خوړلو لپاره عذر دی که څه هـم د سـفر پـه انـدازه کې د فقهاو تر مینځ اختلاف موجود دی، په حنفي مذهب کې هغه سـفر چـې روژه خوراك پکې روا دی لږ تر لږه (۸۹) کیلومتره تاکل شوی دی.

که چیرته یو څوك د سباله ختلو وروسته په سفر پیل وکړي نو په دغه ورځ به روژه کیږي خو که د سختۍ سره مخ کیده روژه ماتولی شي او بیا به قضاء راوړي.

د مسافر لپاره که چیرته ضرر ورته نه رسیده روژه نیول غوره دي خو کـه ضرر ورتـه رسیده او یا یې د سفر زیات ملگري روژه نه و نو بیا ورته روژه نه نیول غوره دي.او کـه چیرته یې د هلاکیدو ویره وه بیا خو ورته روژه نیول حرام دي او باید ماته یې کړي.

### ۲- ناروغي:

ناروغي هم د ټولو فقهاو په اتفاق سره د روژې گ خوړلو لپاره عذر دی په داسـې توگه چې د ناروغۍ سره ورته روژه نیول گران وي او د د زیـاتوالي ویـره یـې وي او یـا یې پر هر زرنه جوړیږي نو روژه ماتول ورته روا دي.

همدغه راز هغه روغ سړی چې په روژه نیولو سره یې په غالب گمان یا تجربه او یا د یو مسلمان او پوه طبیب (چې فاسق نه وي) په خبره د ناروغۍ او ضـعف ویـره وي د ناروغ په شان حکم لري.

دغه راز د حنفي فقهې علماو هغه مسلمان جنگیالي ته چې په جهاد کې د جنگ د ضعیف والي نه ویریږي د روژې گ ماتولو اجازه ورکړیده (که څه هم مسافر نه وي ).

**یادونه**: د ناروغ او مسافر لپاره د قرآن کریم صریحو آیاتونو د روژې گ خوړلو رخصت ورکړی دی،الله پاك فرمایلي دي.(ومن کان مریضاً او علی سفر فعدة من ایام اخر)

ژباړه: او هغه څوك چې ناروغ او یا په سفرکې وي نو په نورو ورځو کې دې بیا (قضاء) روژې ونیسي.

## ۳-حمل او شیدې ورکول:

دحاملې (بارداري ) ښځې لپاره چې ماشوم په گیډه ولري او یا ورته د خپلې سینې څخه شیدې ورکوي کله چې د خپل جنین د مرگ او یا ماشوم د هلاك ډار وي. اویا د ماشوم او یا د ځان د ناروغۍ ویره ورسره وي دروژې ماتول ورته روا دي.خو لازم ده چې د هلاك اویا ناروغۍ ویره یې د تجربې یا د یو مسلمان ډاکټر د خبر له مخې وي.

خو کله یې چې روژه وخوړله فقط قضاء وربانديې لازم ده او فدیه وربانديې نه لازمیږي.

## ۴-بوډاوالی:

دبوډا سړي یا ښځې لپاره چې د کال په اوږدو کې روژه نیولو څخه عاجز وي قضاء نشته او دهرې روژې گ په بدل کې به یوه فدیه ورکوي.

### ۵-ډیره سخته لوږه او تنده:

که څوك دومره اندازه تندې یا لوږې راواخیسته چې د هلاکیدو ویره یې وه یا یې په عقل کې خلل پیښ شو او یا یې ځنې حواسو کار پریښود په داسې توګه چې په روژه نیولو قادر نه و نو روژه خوراك ورته روا او قضاء وربانديې لازم ده.

٦-**اکراه:** دا معنا چې څوك په زور باندې مجبور کړای شي په داسې توګه چې په روژه نیولو ضرر ورته رسوي روژه ماتول ورته روا او قضاوربانديې لازمه ده.

دا هغه مهم عذرونه و چې د موجودیت سره یې روژه ماتول روا او ځنې حالاتو کې لازم دي.

حیض، نفاس، عارضي لیونتوب هم روژه ماتول روا کوي بلکې که روژه ونیسي هم نه صحیح کیږي لکه مخکې چې په شرطونو کې د دې بیان وشو.

په حایضی او نفاسې باندې د روژې ګ قضاء لازمیږي.

او هغه څوك چې په رمضان کې وربانديې بیهوشي راغله چې په ټول رمضان کې اوږده شوه د هغه ورځې قضاء وربانديې لازم نه ده چې بیهوشي ورته پکې پیښه شویده او د نورو ورځو قضاء وربانديې لازم ده.

په همدې توګه که چیرته چاته په ټول رمضان کې لیونتوب پیښ شي بیا وربانديې قضاء لازم نه ده.

### کوم شیان روژه ماتوي؟

د روژې ګ ماتوونکي دوه ډوله دي، یوهغه دي چې فقط قضاء وربانديې لازمیږي بل هغه دي چې قضاء او کفاره دواړه وربانديې لازمیږي.

**یادونه**: کفاره د مریې ازادولو یا پرله پسې شپیته روژې نیولوګ ( که مریې یې نه درلود) یاشپیته مسکینان دوه وخته مړولوته وایي البته که د روژې ګ نیولو څخه عاجز و.

### هغه شیان چې روژې ګ ماتوي او کفاره نه لازموي:

1_ خامې وریجې                ۲ - لامده کړې اوړه

3_ اوړه ۴- په یوځل باندې زیاته مالګه ۵ - خَتهـه ( خـو په دې شرط چې د خَتې خوراك یې عادت نه وي که عادت یې وي بیا وربانديې کفاره لازمیږي).

۷- مالوچ ۸ – کاغذ ۹- خامه بهي ( یا نوره هغه میوه چې خامه وي او د خوړلو وړ نه وي) ۱۰ - شین غوز (چارمغز)

۱۱ - وړې تیږې تیرول ۱۲- اوسپنه (یا نور فلـزات لکـه سره زر او سـپین زر او داسې نور) ۱۳- خاوره ۱۴ - تیږه

۱۵- پوزه کې دواء اچول ۱٦- په حلق کې دواء اچول

۱۷- حقنه (په دبر کې دوا اچول ۱۸- په غوږ کې تیل اچول

۱۹- په غوږ کې اوبه اچول ( دا قاضي خـان او ځنـې نـورو محققینـو ویـلي دي خو په محیط کې– چې هغه هـم یـوه مشـهوره فتـاوی ده – یـې ویـلي دي چـې صـحیح دا ده چـې پـه اوبـو اچولـو نـه مـاتیږي والله اعلـم مراقـي الفـلاح او طحطاوي).

۲۰- د ګیډې پرهر دوا سره علاج کول چې داخل د ګیډې ته رسیږي.

۲۱- د سر د پرهر علاج چې دوا داخل د دماغ تـه ورسـیږي ۲۲ - حلـق ته یې اوربښت یا واوره دننه شي او په خپل اختیاریې تیره نکړي.

۲۳- په مضمضې ( خوله وینځل اوداسه کې ) کې ورځخه په خطا سره پـه اوبـو روژه ماته شي. همدغه راز که استنشاق کې ورځخه په خطـا سره اوبـه حلـق تـه ورسیږي هم روژه ماتیږي، کفاره نه لازمیږي. ۲۴- په روژه خوراك مجبورشي.

۲۵- ښځه چې په خدمت کولود ناروغۍ له امله روژه ماته کړي.

۲٦-که ویده وي او څوك یې په خوله کې اوبه واړوي اوتیرې یې شي

۲۸- د شپې نه یې د روژې ګ نیت نه وي کړی د ورځې یې نیت وکړي او بیایې ماته کړي.

۲۹- چې مسافر د سبا ختلو وروسته د اقامت نیت وکړي او بیا روژه ماته کړي.

۳۰- مقیم چې د سبا ختلو وروسته په سفر پیل وکړي او بیا روژه ماته کړي.

۳۱- پرته له نیت څخه روژه ونیسي. ( په نیت کې دا کافي ده چې پیشمنی وکړي او یا یې په زړه کې دا وي چې روژه به نیسي که په خوله یې ونه وایې هیڅ باك نلري.

۳۲- په داسې حال کې جماع وکړي چې د سبا ختلو په هکله شکمن وي خو روژه د ماښام په شك ماته کړي.

۳۴- د مړي یا حیوان په وطي کولو، مچې، مسه کولو او یا د جماع څخه په بله طریقه ورڅخه مني ووزي.

۳۵- د رمضان د میاشتې څخه پرته نورو وختو کې روژه ماتول که څه هم په قصد سره وي .

٣٦- په قبل یا دبر کې د مالوچ یا لرګي داخلول چې پکې پټ شي. ۳۷- په قصد سره لوګی تیر کړي ( خو چې د سګریټ یا چرسو او نورو نشه یي شیانو لوګی نه وي که د دې شیانو عمل یې وکړ بیا خو وربانديې کفاره لازمه ده – مراقی الفلاح و محمد عزاز علي رحمه الله.

۳۸- قصد سره په ډکه خوله قی کول.

۳۹- چې روژه یې یاده وي او ډکه خوله قی په قصد سره نه وي خو خپله یې بیرته تیر کړي.

۴۰- مخکې د نیت څخه په هیره سره روژه وخوري او بیا د ورځې د روژې ګ نیت وکړي.

۴۲- بیهوشي وربانديې راشي که څه هم ټوله میاشت اوږده شي ( خو د هغې ورځې قضاء وربانديی نشته چې پکې بیهوشه شوی دی.

. ۴۳- لیونتوب ورته ورسیږي چې ټوله میاشت اوږد نه شي (عارضی لیونتوب وي).

## هغه شیان چې روژه ماتوي او د کفارې سره وربانديې قضاء لازموي:

۱- جماع ( په قبل یا دبر کې په فاعل او مفعول دواړو بانديې ).

۲- د خوړو یا دوا خوراك. ۳ - د اوبو یا دوا څښاك.

۴- چې باران یې په خوله د ننه شوی وي او تیر یې کړي.

۵- د خامې غوښې خوړل چې چنجنه نه وي.
٦- د وچې غوښې خوړل.
۷- د غنمو چیچل او بیایې تیرول یا دیو دانې غنم لواړتیرول.
۸- ارمنی خَټه خوړل (دا راز خټه د خوشبویي پلورونکي سره پیژني). ۹- خَټه خوړل چې ورسره عادت وي.

۱۰- لړه مالګه ۱۱- د ښځې یا ډیر نژدې ملګري لاړې تیرول. ۱۲- د غیبت کولو, ښکر لګولو په شهوت سره مچې اخستلو, په شهوت سره لاس وهلو او.... څخه وروسته په دې ګمان خوراك یا څښاك کول چې په مخکې شیانو یې هسې هم روژه ماته شوې ده ( په داسې حال کې چې په هغوشیانو یعنې غیبت, ښکر لګولو او...باندې روژه نه ماتیږي).

که چیرته کوم فقیه ورته فتوی ورکړې وه چې په دې شیانو ( غیبت او... باندې دې روژه ماته شوې ده او بیا یې خوراك یا څښاك وکړ نو کفارهورباندې نه لازمیږي.

## هغه شیان چې روژه نه ماتوي:[59]

1 - په هیره سره خوراك, څښاك یا جماع کول.
2 - په نظر کولو یا فکر کولو سره د منیو وتل که څه هم کوونکی یې ګناهګار دی.
3 - د ورځې له پلوه( احتلام ) شیطان تیر ایستل.
4 - په سترګه کې څاڅکي اچول یا رانجه کول.
5 - ښکر لګول.
6 - مسواك وهل که څه هم مسواك لوند وي ځکه چې سنت دی.
7 - په خوله او پوزه کې اوبه اچول که څه هم د اوداسه لپاره نه وي، خو مبالغه په کې نه کوي.
8 - غسل کول، لمبیدل، په لمدو کالیو کې ځان د سوړوالي په خاطر رانغښتل او په غوږ کې لرګي داخلول.

[59] د نور الایضاح څخه نقل شوي دي

9- د روژې ماتولو نيت.

10- غيبت کول ( که څه هم سخت حرام دی).

11- دلوګي يا ګرد تيرول که څه هم د ژرندې ګرد وي، همدغه راز يا ماشی تيرول يا د دوا خوند چې په حلق کې وي او د ده په لاس کې نه وي، خو کچير ته دکومې خوشبويي لوګی يې وکړ اوهغه يې بوی کړ په داسې حال کې چې روژه يې ياده وي وربانديې ماتيږي. خو کفاره وربانديې لازم نه ده.

12- د غاښ ويستل خو چې وينه او دوا تيره نکړي.

13- د سړي په ذکر کې د اوبو يا بل مايع شي اچول , په غوږ کې د اوبو داخليدل او د غوږ د داخل نه خيرى ليرې کول که څه هم لدې ټولو کارونوډېره کول غوره دي.

14- د خړينګ يا بلغم تيرول که څه هم ګوزارول يې غوره دي ځکه چې کرکه ورځنې کيږي

15- په قصد سره قی کول چې په ډکه خوله سره نه وي. ( قی کول چې په قصد سره نه او د مجبوري څخه وي که څه هم خوله ډکه کړي).

16 -د غاښونو په منځ کې د شي تيرول چې د نخود د دانې څخه لږ وي.

17- چې جنب وي او وربانديې سبا و خيژي که څه هم ټوله ورځ غسل و نکړي خو د لمانځه په هکله غټ ګناهګار دی ځکه چې غسل ونکړي نو لمونځ يې نه کيږي او دا خو ډيره لويه ګناه ده.

18- د خوشبويه شيانو بويول لکه عطر، ګل او داسې نور.

**خواره واره مسايل:**

۱- که چير ته د بيلا بيلو عذرونو له امله يو څوك روژه ماته کړي او د هغې ورځې په اوږدو کې يې عذر له مينځه لاړشي نو وربانديې واجب دي چې پاتې ورځ روژه کړي او بيا د دې ورځې قضايي راوړي.

په همدې توګه که د ورځې په نيمايې کې يو مسافر مقيم , ناروغ روغ، کافر مسلمان او ماشوم بالغ شي د پاتې ورځې روژه وربانديې واجب ده. خو په کافر او ماشوم بانديې د دې ورځې قضا لازم نه ده.

۲- که چیرته ځوك په هیره سره روژه خوري په داسې حال کې چې د روژې گ نیولو څخه عاجز نه وي بل کس باندې واجب دي چې ورته یې وریاد کړي او که چیرته ضعیف و یا ډیر سخت تږی او وږی و نو غوره دا ده چې ورته یې یاد نکړي.

۳- په روژه کې پیچکاري تیرول:دا یوه داسې مسئله ده چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په زمانه کې نه وه او نه د راشده خلیفه گانو، د مذهب امامانو او مشرانو مجتهدینو په زمانه کې موجود وولدې امله په دې هکله بیلابیلې فتوې موجود دي. حنفي فقها وايي چې مطلقا ماتیږي ( او دا خبره ضعیفه ده) ځینې وایي چې مطلقا نه ماتیږي او ځینې پکې تفصیل کوي.

معاصر فقیه استاذ وهبه الزحیلي په خپله فقهي موسوعه ( الفقه الاسلامی و ادلته) کې لیکلي چې: پیچکاري که په غوښه کې وه یا د پوستکي لاندې وه او یا په وریدونو کې وه نو روژه وربانده نه ماتیږي که څه هم غوره دا ده چې ماښام څخه وروسته شي او که په شریان کې وه نو بیا وربانده روژه ماتیږي.

بل معاصر فقیه شیخ عبدالله ناصح علوان په خپله یوه کوچنۍ رساله کې چې د رمضان د ښیگړو او احکامو په هکله یې لیکلې ده وایي: چې سنته وهل په هیڅ توگه روژه نه ماتوي که په رگ او که په غوښه کې وي که څه هم ماښام ته یې وروسته کول غوره دي. دغه راز مشهور مفتي مولانا محمد شفیع ( رحمه الله تعالی) د ( آلات جدیده) په نوم خپل یو کتاب کې په تفصیل سره په دې مسئله بحث کړی دی او ځنې مثالونه یې د دې لپاره راوړي دي او دایې په ډاگه کړې ده چې په هیڅ توگه په پیچکاري روژه نه ماتیږي که هغه سیروم وي او که بله، که په ورید کې وي او که په شریان کې لکه څه ډول چې د خزندگانو په چیچلو نه ماتیږي په داسې حال کې چې دمار یا لړم زهر هم د پیچکاري په توگه داخلیږي مفتي صاحب ( رحمه الله تعالی) دا هم ویلي دي چې فقهاو دماغ او گیډې ته د یو شي داخلیدل په روژه ماتولو کې د معتادو لارو ( چې هغه خوله یا عورت دی) پورې محدود ښودلي دي. (دا د صاحبینو مذهب دی)[60]

60 الاختیار – مفسدات الصوم.

د هند د نیمې وچې نورو سترو علماوو هم د دې مسئلې په حکم کې د مفتي صاحب ( رحمه الله تعالی) ننګه کړې ده او د نوموړي په فتوې باندې یې خپل تصدیق کړی دی . د هغوی د جملې څخه حضرت مولانا اشرف علي ,حضرت مولانا اصغر حسین، حضرت مولانا حسین احمد مدني او حضرت مولانا محمد اعزاز علي رحمهم الله تعالی د یا دولو وړ دي.

د روژې ګ ماتوونکو، نه ماتوونکو او متفرقه مسائلو کې د لاندې کتابونه څخه استفاده شوې ده:

۱- فتح القدیر شرح الهدایه ۲- رد المختار ۳- مراقی الفلاح

۴- طحاوي ۵- نور الیضاح ٦ - په نور الایضاح باندې د مولانا محمد اعزاز علي حاشیه ۷ - الفقه الاسلامي و ادلته او داسې نور.

**تراویح:**

د رمضان په مبارکه میاشت کې تراویح یو غوره عبادت دی. تراویح د لغت له پلوه د ترویحه جمع ده چې د استراحت په معنی ده.

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي:

( من قام رمضان ایمانا و احتسابا غفر له ما تقدم من ذنبه) ( ۱ )

**ژباړه:** چا چې د ایماني غوښتنې او اجر په نیت د رمضان میاشت ودروله (لمونځ یې پکې وکړ ) مخکینې ګناهونه به یې و ښښل شي ( چې حقوق العباد او غټ ګناهونه نه وي ځکه چې حقوق العباد په رد کولو او غټ ګناهونه په توبه سره ښښل کیږي).

امام نووي رحمه الله تعالی ویلي دي چې:په تراویح سره د قیام رمضان اجر میندل کیږي خو پرته له تراویح قیام رمضان ممکن نه دی.

د حضرت عایشې رضی الله تعالی عنها څخه په صحیح حدیث کې روایت دی چې: رسول الله صلی الله علیه وسلم په مسجد کې لمونځ وکړ خلکو هم ورسره ادا کړ بله شپه یې هم لمونځ وکړ او ګڼه ډیره زیاته شوه دریمه شپه بیا خلك راټول شول رسول الله صلی الله علیه وسلم راونه ووت چې سهار شه بیایې وفرمایل ( قد رایت

صنیعکم فلم یمنعنی من الخروج ړلیکم الا انـی خشـیت ان تفـرض علـیکم) و ذلـك فی رمضان [61]

**ژباړه**: ما ستاسې کړنه ولیده خو لدې ویـرې چـې پـر تاسـې بـه فـرض شي راونـه وتلم.( او دا د رمضان په میاشت کې و) .

د تراویح په هکله ګڼ شمیر احادیث او آثـار راغـلي دي چـې د تـراویح پـه سـنت والي او غوره توب دلالت کوي.

تراویح د نارینه و او ښځینه و لپاره سـنت دي خـو پـه جماعـت سره ادا کـول يـې سنت  کفایي دي. یعنې که ځنـې خلکـو پـه جماعـت ادا کـړې د نـورو څخـه هـم دا سنت غورځیږي.

**د تراویح وخت:**

د ماسخوتن د  لمانځه نه وروسته د تراویح وخت دی. تراویح د وترو څخه مخکـې او وروسته صحیح دي که څه هم غوره داده چې د وترو څخه مخکې ادا کړای شي.

د دریمې برخې یا نیمایـې شـپې پـورې د تـراویح وروسـته کـول مسـتحب دي او دنیمایې شپې څخه وروسته مکروه ندي.

تراویح شل رکعته دي چې په لسو سلامونو سره ادا کیـږي. یعنـی هـر دوه رکعتـه بیل بیل ادا کیږي.

د هرو څلورو رکعتونو وروسته د هغـو پـه انـدازه کیناسـتل مسـتحب دي. د ټـولې میاشتې په اږدو کې د تراویح په لمانځه کې یو ځل د قرآنکریم ختم سـنت دی، کـه چیرته دوه ځله او درې ځله وشي غوره ده خو پدې شرط چې خلـك پـرې خـوښ وي هسې نه چې جبري ډول وربانديې په مسجد کې ختم کیږي.

نن سبا ختمونو داسې رواج موندلی دی چې خلك به فرض لمانځه ته نه راوځـي خو ختم ته به په رواجي  توګه راځي او قاري صاحبان دومره په سرعت اوچټکتیا سره تلاوت کـوي چـې د قـرآن اداء تـه زیـان رسـوي او پـه صـحیح توګـه يـې نـه شي اداء کولای, که پداسې توګه وي نو هیڅ فقیه ددې اجازه نده ورکړې او ددې هـم امکـان شته چې په غلطي سره ګناهګار شي. زما ( افقر رفیع الله) ټولو خلکو او په ځـانګړې

[61] ۱- بخاري او مسلم

توګه قاري صاحبانو څخه دا غوښــتنه ده چــې قرآنکـریم ښـه او پـه صـحیح توګـه ادا کړي او دغه راز د تراویح په لمانځه کې د زیات سرعت څخه کـار وانخـلي هسـې نـه چې هغه کانه وشي چې وایي ( هندو سترې او خدای نا راضـه ) اللـه پـاك دې مـونږ ټولو ته په ښه توګه د عباداتو د ادا کولو توفیق راکړي. آمین

**د روژې ګ قضاء:**

که چیرې څوك په عذر سره روژه وخوري نو قضـاء وربانـدې لازمـه ده اوکـه څـوك یې له عذر څخه پرته وخوري ګناهګار دی, توبه به اوباسي او دکفـارې سره بـه قضـاء راوړي خو بیا هم د هغه روژه اجر نه شي موندلی.

په یو حدیث شریـف کـې چـې ترمـذي, نسـایي, ابـو داود او صـحیح ابـن خزیمـه روایت کړی رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: ( من افطر یوما من مـن غـیر رخصة و لامرض, لم یقضه صوم الدهر کله, و إن صامه )

**ژباړه:** څوك چې د رمضان یوه روژه پرته له شرعي عذر او مرض څخه وخوري په ټول عمر کې به یې قضاء رانه وړي که څه هم ټول عمر روژه شي.

د پورتني حدیث د عبارت څخه دا څرګندیږي چې څوك پرتـه لـه عـذر د رمضـان مبارك د یوې ورځې ( فقط) احترام هم و نه ساتي په ټول عمر کې به یـې عـوض پـه لاس ورنه شي. نو مسـلمان تـه پـه هـیڅ توګـه نـه ښـایي چـې د روژې ګ پـه مـاتولو ورځخه د رمضان بي احترامي وشي بلکې وړده چې د ټولو آدابو سره یې پوره احـترام وساتي.

که څوك د عذر له پلوه روژه وخوري نو غوره ده چې په نژدې وخت کې یې قضـاء راوړي.

**پرله پسې والی:**

د قضاء په راوړلو کې که چیرته ورځې دوه یا ډیرې وي پر له پســې والی مسـتحب دی خو شرط نه دی.

**هغه څوك چې روژه وربانديې وي او مړشي دوه حالته لري:**

۱- په داسې حال کې چې د روژې لپاره ورسره وخت وفا و نکړي نو هيڅ هم وربانديې نشته خوچې روژه يې د شرعي عذر په اساس خوړلې وي لکه, سفر, مرض او داسې نور.

۲- وخت په لاس ورشي خو قضا رانه وړي په داسې شخص باندې فديه لازمه ده او د ولي (خپلوان) روژه د ده لپاره نه صحيح کيږي.

۳- که وصيت يې کړی وي چې زما د روژو څخه دې فديه ورکړل شي نو په کار ده چې د هرې ورځې په بدل کې نيمه پيمانه غنم ورکړي.

نيمه پيمانه( ۱۹۰۰) گرامه سره برابره ده.

**د روژې کفاره:**

د کفارې يوه لغوي معنی پرده او پټول دي, او په کفارې سره هم انسان خپله گناه پټوي. په شريعت کې د هغې روژې گ, صدقې يا بل عبادت څخه عبارت ده چې انسان په هغې سره د خپلې گناه بښنه غواړي ( والله تعالی اعلم).

**د کفارې موجب:**

د کفارې موجب د رمضان مبارکه مياشت کې قصدا جماع کول او يا قصدا د شرعي عذر پرته خوراك او څښاك کول دي.

**حکم يې:**

کفاره واجب ده کله يې چې د روژې گ په مياشت کې روژه په جماع, خوراك او څښاك سره قصدا ماته کړې وي.

**دليل يې:**

ابو هريره رضی الله عنه څخه روايت دی چې: پيغمبر صلی الله عليه وسلم ته يو سړی راغی او ورته يې وويل: هلاك شوم يا رسول الله, هغه مبارك ورته وويل چې: څه شي هلاك کړی يې؟ هغه (سړي) وويل: د رمضان په مياشت کې مې ( د ورځې) خپلې ښځې سره جماع کړې ده هغه مبارك ورته وويل:آيا غلام لرې چې ازاد يې کړې؟ هغه سړي ځواب ورکړ, نه! هغه مبارك ورته وويل: آيا دوه مياشتې پرله پسې روژې گ نيولای شې؟هغه ( سړي) وويل چې: نه, هغه مبارك ورته وويل چې: آيا څه مومې چې شپيته مسکينانو ته ډوډۍ ورکړې؟ هغه ( سړي) وويل چې: نه!بيا

کیناستل، نو پیغمبر صل الله علیه وسلم ته یو زمبیل راوړل شو چې په هغه کې خرما وې نوهغه سړي ته یې وویل: دا خیرات کړه، هغه سړي وویل چې: آیا زما څخه فقیر شته؟ په دې ځای کې خو زما څخه حاجتمنه کورنۍ نشته. بیا رسول الله صل الله علیه وسلم وخندل تردې چې (نواجذ) غاښونه یې ښکاره شول او ویې ویل: لاړ شه دادې اولاد ته ورکړه.

دا حدیث شریف چې د حدیثو شپږو مشهورو کتابونو، بخاري، مسلم، ابوداود، ترمذي، نسایي او ابن ماجه ذکر کړی دی په بیلابیلو الفاظو او په لږ توپیر سره ګڼ شمیر نورو محدثینو هم روایت کړی دی.

**د کفارې ډولونه:**

د کفارې ډولونه درې دي:

۱- د مریې آزادول ( که کافر هم وي) که چیرته د دې څه عاجز و نوبیا دوه میاشتې پرله پسې روژه ده، که د دې څخه هم عاجز و بیا شپیته مسکینانوته دوه وخته په مړه ګیده ډوډۍ ورکول او یا نیمه پیمانه غنم یا اوړه ورکول دي، نیمه پیمانه ( ۱۹۰۰) ګرامه سره برابره ده. دغه راز که اوربشې، خرما یا ممیز و نو پوره یوه پیمانه واجب ده که چیرته د نیمې پیمانې په مقابل کې یې د غنمو قیمت ورکول هم صحیح کیږي. د فقیر لپاره روا نه ده چې کفاره خپل اولاد ته ورکړي په هغه پورتنې حدیث کې فقهاو د اولاد لپاره ورکول فقط هم هغه سړي پورې خاص کړي دي.

**که چیرته کفارې ګڼې شي:**

که چیر ته یو څوك په یوه ورځ کې جماع یا خوراك او څښاك وکړي بیا هم وربانديې هم هغه یوه کفاره واجب ده.

دغه راز که چیرې دوه ورځې یا زیاتې یې روژه خوړلې وې او ټولې کفارې وربانديې یو ځای شوې وې د ټولو لپاره یوه کفاره بس ده که څه هم د دوه رمضانونو وې، خو که د یوې روژې کفاره یې ادا کړه او بیا یې دهغې وروسته روژه قصد سره ما ته کړه بله کفاره هم وربانديې واجب ده.

**چې د كفارې څخه عاجز شي:**

كه څوك د كفارې څخه عاجز شي نو په غاړه يې پاتې شوه.

**د روژې ګ فديه:**

**هغه څوك چې د روژې له نيولو څخه بالكل عاجز وي لكه شيخ فاني (بـوډا سړى يا بوډۍ ښځه) يا داسې ناروغ چې روغتيا يـې ممكنـه نـه وي پـه هغـوى فديه واجبيږي. فديـه د نيمـې پيمانـې غنمـو څخـه عبـارت ده چـې ( ۱۹۰۰) ګرامه كيږي او قيمت وركول يې هم صحيح دي.**

**اعتكاف:**

**اعتكاف په لغت كې مطلقا درنګ كولو ته وايـي او پـه شرع كـې پـه داسـې مسجد كې د نيت سره اوسيدل دي چې پنځه وخته لمونځ پكـې پـه جماعـت سره اداء كيـږي. د اعتكـاف ذكـر پـه قـرآن كـريم كـې راغـلى دى، چـې دا د اعتكاف په ارزښت دلالت كوي. الله پاك فرمايلي:**

**( ولا تباشروهن و انتم عاكفون في المساجد)[62]**

**ژباړه: په داسې حال كې ښځو تـه مـه نـژدې كيـږئ چـې پـه جومـاتونو كـې مواعتكاف كړى وي.**

**د حضرت ابوهريرة رضى الله عنه څخه روايت دى چې:**

**( ان النبى صل الله عليه كان يعتكف فى كل رمضان عشرة ايـام فلـما كـان العام الذى قبض فيه اعتكف عشرين يوما) [63]**

**ژباړه: يقينا پيغمبر صل الله عليه وسلم بـه د رمضـان لـس ورځـې اعتكـاف كاوه خو په كوم كال يې چې له دنيا څخه رحلت وكـړ نـو شـل ورځـې معتكـف شو - سبحان الله رسول الله صلى الله عليه وسلم به د هر كال په رمضان كې اعتكاف كاوه او د رحلت په كال يې شل ورځې كـړى دى پـه داسـې حـال كـې چې په ځينو ځايونو كې دا سنت شاته غورځول شوي دي.**

---

62 البقره

63 بخارى

**اعتکاف د رمضان میاشتې په وروستیو لس ورځو کې سنت موکد کفایي دی. رسول الله صلی الله علیه وسلم به هم د رمضان وروستیو لسو ورځو کې اعتکاف کاوه.**

**ډیر احتمال دی چې قدر شپه هم ( کومه چې د زرو میاشتو څخه غوره ده) په همدې لسو وروستیو ورځو کې وي, نو کله چې په دې وخت کې د عبادت لپاره متفرغ وي ډیره غوره خبره ده.**

**د اعتکاف ډولونه:**

اعتکاف په درې ډوله دي:

۱- واجب (چې څوك یې په ځان باندې نذر کړي)

۲- سنت موکد کفایي.( د رمضان په میاشت کې)

۳- مستحب ( چې نه نذروي او نه د رمضان د وروستیو لس ورځو).

**د اعتکاف د روا والي حکمت:**

**د دنیا د چارو څخه په فارغ زړه عبادت کول ,الله پاك ته د خپل نفس سپارل او د الله پاك په کور کې په عبادت بوختیدل, هر څه ته شا گرځول او یوازې د الله پاك د پیرزوینو یادول د اعتکاف حکمت دی.**

**د کال په اوږدو کې یو وخت داسې هم په کار دی چې انسان فقط عبادت ته متفرغ شي ځکه چې عبادت په دنیا کې د انسان اصلي دنده ده او نورې چارې د وسایلو حیثیت لري.**

**د حضرت عطاء څخه روایت دی چې: معتکف داسې دی لکه یو سړی چې د پاچا په دروازې کې د حاجت لپاره ولاړ وي, نو معتکف داسې مثال لري لکه دحال په ژبه چې وایي: اې الله ترهغه دلته یم تر څو راته بښنه وکړې.**

**دا چې رسول الله صل الله علیه وسلم به په هیڅ رمضان کې اعتکاف نه پریښول په داسې حال کې چې د هغه مبارك همیش رابطه د وحي په ذریعه له الله پاك سره موجوده وه، خو بیا هم هغه مبارك د الله پاك سره موجوده وه، خو بیا هم هغه مبارك الله پاك ته د عاجزي, عبادت او دعا لپاره دا لس ورځې په داسې توگه خاص کولې چې د دنیا نورو چارو ته به یې شا کړه, نو**

اوس خو د نورو خلکو لپاره ډیره وړ ده چې د دغه بختور فرصت څخه په استفادې د الله پاك عبادت وکړي.

د اعتکاف وخت:

مخکې د مسنون اعتکاف خبره وشوه چې د رمضان په وروستیو لس ورځو کې ادا کیږي. د نذري اعتکاف وخت هغومره دی چې په ځان باندې یې نذر کړی وي. دمستحب اعتکاف وخت یوه شیبه هم کیدای شي نو په کار ده چې څوك لږ وخت په مسجد کې د لمانځه لپاره انتظار باسي هم د اعتکاف نیت وکړي، الله پاك به ورته د اعتکاف اجر ورکړي. په پورته توگه د اعتکاف لږ تر لږه موده ولیکل شوه د اعتکاف ډیره موده اندازه نه لري.

د اعتکاف د صحت شرطونه:

۱- اسلام

۲- تمییز ( داسې ماشوم چې ممیز نه وي اعتکاف یې نه صحیح کیږي)

۳- نیت (له نیت څخه پرته اعتکاف نه صحیح کیږي).

۴- د اعتکاف لپاره د جنابت, حیض او نفاس څخه پاکوالی هم ضروري دی. که محتلم شو نو باید په نژدې ممکن وخت کې غسل وکړي.

۵- مسجد ( چې پنځه وخته لمونځ پکې په جماعت سره اداء کیږي) خو د ښځې لپاره دا شرط نه دی ځکه چې د هغې اعتکاف د کور په مسجد کې صحیح کیږي د کور مسجد هغه ځای دی چې په کور کې یې د لمانځه لپاره جوړ کړی وي.

٦- روژه د نفلي اعتکاف لپاره شرط اما د مستحب اعتکاف لپاره شرط نه دی.

کومو شیانو لپاره د اعتکاف په وخت له مسجد نه وتلی شي؟

۱- د جمعې د لمانځه لپاره .     2- انساني حاجت لپاره .

۳- د ضرورت لپاره لکه د مسجد ړنگیدل .

۴- په زور سره یې څوك له مسجد څخه وباسي.

۵- د ځان یا د مال له ویرې ووزي .

**٦- کورنۍ یې بل ځای ته نقل شي .**

**خو لازم دي چې بیرته په نژدې ممکن وخت کې مسجد ته راشي او یا په ځنې صورتونو کې بل مسجد ته لاړ شي.**

**دغه شیان په اعتکاف کې مکروه دي:**

١- د خرڅولو یا رانیولو لپاره مسجد ته د یوڅیز داخلول .

٢- د تجارت لپاره عقد ( تړون) .

٣- په دې عقیده چپ پاتې کیدل چې ثواب دی ( مکروه دي ) یعنې مناسب دي چې معتکف د قرآن کریم تلاوت ,ذکر, د پیغمبر صلی الله علیه وسلم سیرت او حدیثونو, د پیغمبرانو علیهم السلام په قصو, د نیکانوپه حکایتونو, د دیني امورو په لیکلو او علم باندې مشغول وي.

۴- عبث خبرې هم مکروه دي.

۵- دغه د اعتکاف آداب نه مراعاتول هم مکروه دي.

**هغه شیان چې په اعتکاف کې حرام دي:**

١- جماع کول

٢- د جماع دواعي لکه په شهوت سره نظر او داسې نور.

**په دغو شیانو اعتکاف فاسدیږي:**

١- له هغه اعذارو پرته چې مخکې یې ذکر وشو د مسجد څخه وتل.

٢- جماع کول ( که څه هم په هیره سره وي )

٣- د مریض پوښتنې ته وتل.

۴- د جنازې لپاره وتل.

۵- د منیو وتل په ( مچې, مسحه کولو او داسې نورو سره) .

البته په ذکر شوو شیانو کې په هیره سره هم اعتکاف فاسدیږي.

**کله چې اعتکاف فاسد شي!**

که څوك ( د رمضان په لسو وروستیو ورځوکې) مسنون اعتکاف پیل او بیایې فاسد کړي د جمهورو احنافو په مذهب د همغې یوې ورځې اعتکاف ورباندې واجب دی چې قضایې راوړي او د امام ابو یوسف رحمه الله تعالی په مذهب ورباندې د

لسو ورځو د اعتکاف قضاء واجب ده. که اعتکاف واجب و لکه نذري اعتکاف او فاسد شي نو قضاء يې واجب ده مگر په هغه صورت کې چې فساد يې دمرتد والي سره وي بيا وربانديې قضاء نشته. که نفلي اعتکاف د پوره ورځې څخه مخکې فاسد شي نو قضاء ورباندې واجب نه ده.

**د اعتکاف آداب:**

**دا چې معتکف ځان د الله پاك د عبادت په نيت فارغ کړی وي نو بايد د الله په عبادت زيات مشغول وي. لکه د کلمې طيبې ذکر ( لا إله إلا الله محمد ر سول الله) استغفار, د الله پاك په مخلوقاتو کې سوچ کول, په پيغمبر صلى الله عليه وسلم درود ويل او داسې نور.**

**په همدې توگه د علم زده کول يا يې بل چا ته ښودل, د پيغمبر صلى الله عليه وسلم سيرت اودنوروپيغمبرانو عليهم السلام اونيکانو حکايتونه لوستل او ددينې شيانو او د هغو پندونو او نصيحتونو ليکل چې زړه وربانديې صفا او نفس وربانديې تزکيه کيږي د اعتکاف د آدابو څخه دي.**

**غوره ده چې د اختر شپه هم په مسجد کې پاتې شي او داعتکافله ځای څخه د اختر لمانځه ته روان شي.**

**بايد د اعتکاف په دوران کې د بيهوده او سپکو خبرو, ښکنځلو او جگړو اوټولو هغو چارو څخه ځان وژغوري چې گټورې نه وي. ځکه چې دا کارونه د اعتکاف څخه پرته هم وړ نه دي نو په اعتکاف کې خو په طريقه اولى ښه کار نه دی.**

**هغه کارونه چې معتکف ته په مسجد کې روا دي:**

**داچې معتکف د خو گوته په شمار عذرونو پرته د مسجد څخه دوتلو اجازه نه لري نو کولای شي خوراك او څښاك په مسجد کې وکړي خو په کار ده چې دستر خوان خپور کړي او دمسجد د پاکوالي احترام وساتي. معتکف کولای شي چې د ځان او اولاد د ضرورت وړ شيانو د رانيولو يا نکاح او داسې نوروچارو تړونونه ( عقدونه) په مسجد کې وکړي.**

**د پاملرنې وړ يوه خبره:**

نن سبا ځنې ځايونو کې مسلمانان ټولنيز اعتكافونه كوي چې داسې ګڼ تعليمي پروګرامونه لري, دغه راز د مسجد څخه د علم او درس لپاره پوهنتون يا ليسې ته ووزي, دا اعتكاف سنت نه بلكې يو مستحب اعتكاف بللاى شو, د مسجد څخه په وتلو سره سنت اعتكاف فاسديږي كه څه هم هغه د جنازې اود مريض د پوښتنې لپاره **وي . دا ډول ديني او روحاني** درسونه پكې ګټور دي چې ګڼې ګټې لري او سنت اعتكاف ته ضرر نه رسوي خوچې د مسجد څخه خارج نه شي خوكه د معتكفينو په مينځ كې اختلاط او يا درسونه دومره زيات شي چې د اعتكاف حكمت ته زيان ورسوي ښه نده, د اعتكاف د حكمتونو څخه يو دادى چې معتكف د الله پاك سره په خلوت كې وي او د الله په مخلوقاتو كې فكروكړي او په ذكر او عبادت بوخت وي د ځنې امامانو په مذهب لكه امام مالك رحمه الله تعالى په اعتكاف كې د درسونو زياتوالى ناروا دى, نوبايد چې دا ټولې خبرې په نظر كې ونيول شي.

دا هم بايد ووايو چې د هغه چا لپاره چې زيات وخت نه مومي او لږ وخت د اعتكاف لپاره وركړي لكه د شپې داعتكاف په ځاى كې كيني غوره خبره ده. ځكه ګټه چې پوره په لاس نه راځي كه يوه برخه يې په لاس راځي نو بايد له لاسه يې ورنكړو. كه څو كسه په يو مسجد كې معتكف وي , ګډ پروګرام او د ښه نظم لپاره مسْول و لري د اعتكاف د آدابو مخالف نه ده, خو داسې هم نه چې هغه مسْول يو عسكري ظابط غوندې شي او په مسجد كې معتكفين په ځنې كارونو مجبور وي لنډه دا چې كه ټولنيز اعتكاف هم وي نو لازمه ده چې د خوب د وخت نه پرته نورو وختونو كې هم زيات وخت انفرادي پروګرامونو ته وركړل شي په ټولنيز اعتكاف كې په جماعت سره په نفلي لمانځه باندې معتكفين مجبورول د فقهي احكامو په رڼا كې روا خبره نه ده. ( والله اعلم )

د اعتكاف په بحث كې د فتح القدير, شامي. اختيار, الفقه الاسلامي او داسې نورو فقهي كتابونو څخه استفاده شوې ده.

**د قدر شپه:**

د قدر شپه هغه شپه ده چې په قرآن كريم كې يې ذكر راغلى دى . الله پاك فرمايي: ➀ ✍ ♋ ✲ ☼ ✍ ✎ 📖 ❐ ☼ ➑ ♦ ☏ ⬂ ✡ ☐ 🕔 ❍ 🡐 ✖ ✍ ➐

☏ ♦ ⓿ ⬂ ✁ ♦ 🕯 ✍ ✁ ♋ ☏ ⬂ ➀ ♦ ⑨ ⇳ ❻ ✍ ⮵ ⮷ ⮴ ❑ ◆ 👌 ♦ ♋ ✎

↗🕯♦✂♑⓿♦♌◉ ✍♦✌ ⊠🖮🗁♦❻⬋⓾❒🕮
↗🕯♦✂♑⓿♦♌◉ ⬗✠⬀ ⌧❻⇳⑨♦◑♑♌◉✍✂
✐✂♑♌◉❒🕮 ⇳♊♋♓✌ ∢❸⬀❷⊠❀ ⌧❻⇳⑨♦◑♑♌◉✍✂
⬗⌧⬀ ⬉✌❒❾♦ॐ♦✍ ♌◉❷⬀&⊠✸
←⊠❒❾❷♌◉✍✂♦❒ →❒♦▤⌧◇✸◷■▤⊠☺♑♌◉✍✂
♊♋♓✌ ☠⌧&⌧♒▤♦❻ ⬀♌♑⓿♐⌧♐✉ ✍❒&❸♋▫
“❻♋♎ ⬋⚐◷■▤⊠♌ ⬗⌧⬀ ♌◉❺⬀♦❒🕮 ⬀♏✍↗✉
⬗♐⬀ ⌧❷⇳⬈⊠▦♑♌◉✍✂ ⬀↗■▤⇳⬀♦✌ ▤⌧✸☹⊠❍

**ژباړه:** يقينا مونږ دغه ( ټول قرآن ) د قدر په شپه کې نـازل کـړى دى , او څـه شي پـوه کړى يې ته ؟ چې څه ده شپه د قدر ( د عزت او شرافت له پلوه؟)

د قدر شپه د زرو ( هغه ) مياشتو څخه غوره ده ( چې دا شپه پکې نه وي ) ( خـو د هغه چا لپاره چې ويې مومي او پکې عبادت بانـدې مشـغول شي ) پرښـتې او روح په دغه شپه کې د الله په حکم رانښکته کيږي, د هر کارلپاره سلامتيا ده, دغه شپه د سبا ختلو پورې ده.

د دې شپې غوره والى لدې څخه ښه معلوميږي چې الله پاك په قرآن کـې کـريم پوره يو سورت په دې هکله نازل کړى دى او قرآن کريم يې هم په دغه شپه کې نازل کړى دى. د بخاري شريف او مسلم شريف پـه صـحيح حـديث کـې روايـت دى چـې رسول الله صل الله عليه وسلم فرمايلي دي: ( من قام ليلـة القـدر إيمانـا و احتسـابا غفر له ما تقدم من ذنبه )

ژباړه: څوك چې د ايماني غوښتني او ثواب په نيت د قـدر شـپه ودروي ( عبـادت پکې وکړي ) مخکيني گناهونه به يې و ښښل شي ( چې غټ نه وي او حقـوق العبـاد نه وي) .

## د قدر شپه کله وي؟

د دغې شپې په اړه علماء اختلاف لري. چې آيا دغه شپه اوس هم پاتې ده او که نه او آيا دا يوه ټاکلې شپه ده او که د کال په اوږدو کې د يـوي شـپې څخـه بلـې تـه بـدليږي؟ خـو راجـح او صـحيح خـبره داده چـې دا اوس هـم شـته او د رمضـان پـه مياشت کې ده لکه چې په صريح توگه څو ځايه په قـرآن کـريم کـې پـه ډاگـه شـوې ده. دا هم صحيحو احاديثو کې ثابته ده چې د رمضان په وروستيو لسو ورځو کـې او

بیا په طاقو شپو کې ده, دا مطلب د بخاري شریف او مسلم شریف په حدیث کې څرګند راغلی دی:

(( تحروا لیلة القدر فی الوتر فی العشرة الاواخر من رمضان))

**ژباړه:** قدر شپه د رمضان د ورستي لسیزې په طاق شپو کې ولټوي.

امام احمد رحمه الله تعالی په خپل سند سره له حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه نه روایت کړی دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: ( لیلة القدر لیلة سبع و عشرین )

ژباړه: د قدر شپه اوه ویشتمه شپه ده ( د رمضان ) .

دا خبره بالکل غلطه ده چې دا شپه اوس پاتې نه ده ځکه مخکې په حدیث شریف کې تیر شو چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د دغې شپې د پلټنې امر کړی دی اودا مطلب په نورو ګنو احادیثو کې هم راغلی دی.

**په دغه شپه کې عبادت:**

د قدر شپه کې عبادت زیات ثواب لري او په کار ده چې د قرآن کریم په تلاوت, لمونځ, ذکر, درود، شرعي علم او دعا باندې تیره شي.

**یوه ارزښتناکه دعا:**

حضرت عایشه رضی الله عنها فرمایي چې: ما رسول الله صل الله علیه وسلم ته وویل, که چیرته دغه شپه باندې پوه شم نو څه پکې ووایم؟

نو رسول الله صلی الله علیه وسلم و فرمایل: ووایه چې ( اللهم ږنك عفوتحب العفو فاعف عنا)

**ژباړه:** اې الله ! بیشکه همدا ته ډیر عفوه کونکی یې او عفوه خوښوې نو ماته عفوه وکړه !! ( آمین )

دا حدیث شریف امام ترمذي روایت کړی دی .

**سرسایه:**

(سرسایه ) زکاة الفطر ته صدقة الفطرته هم وایي همدغه راز د سر زکات هم ورته ویل کیږي چې دلته خلك ورته سرسایه وایي. صدقه د فطر نسبت ورته په دې خاطر شوی دی چې د رمضان څخه په فطر ( وتلو او ماتولو) واجبیږي. د بخاري شریف او

مسلم شریف په صحیح حدیث کې د حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنها څخه روایت دی چې: ( ان النبی صل الله علیه وسلم امر بزکاة الفطر صاعا من تمر او صاعا من شعیر.....)

**ژباړه:** یقینا پیغمبر صلی الله علیه وسلم د فطر په زکات ( سرسایه ) ادا کولو باندې امر کړی دی، یوه پیمانه د خرما او اوربشو څخه.

**د روا والي حکمت یې:**

د ابو داود شریف حدیث دی چې حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما فرمایلي دي:( رسول الله صلی الله علیه وسلم د فطر زکات ( سرسایه) فرض کړې ده چې د روژتي د ناوړه خبرو لپاره پاکوالی او د مسکینانو لپاره ډوډۍ شي چا چې د اختر لمانځه څخه مخکې ادا کړه هغه قبوله ده او چې د اختر د لمانځه څخه وروسته یې ادا کړه نو د صدقو د جملې څخه یوه ( عادي ) صدقه ده ) .

**په چا باندې واجبیږي:**

**په** آزاد مسلمان چې د نصاب څښتن ( غني) وي که څه هم په مال یې کال نه وي تیر شوی سر سایه واجبیږي. خو چې داسې قرض ورباندې نه وي چې نصاب ورباندې کمیږي او دخپل ځان او اولاد ضروري اړتیا څخه هم دا مال زیات وي.

**د کومو کسانو سرسایه ورکول په سړي واجب دي؟**

د خپل ځان، د خپلو کوچنیو ماشومانو( چې بالغ نه وي) او فقیران وي او د خپلو مرئیانو سرسایه په سړي واجب ده د ښځې، بلوغ ته رسیدلي اولاد، کوچني اولاد خو چې غني وي سرسایه په سړي نه واجبیږي.

**څه وخت واجبیږي؟**

د کوچني اختر له سبا ختلو سره واجبیږي.

**د سرسایې اندازه:**

د سرسایې اندازه نیمه پیمانه غنم یا یې اوړه دي چې (۱۹۰۰) گرامه کیږي او یا پوره پیمانه خرما, اوربشې او ممیز دي په سرسایه کې قیمت هم صحیح دی بلکې غوره هم دی که د فقیرانو اړتیا ورته زیاته وه. او که د غلې د نیستی شپې او ورځې وي بیا دا غوره ده چې غنم, اوړه یا اوربشې, ممیز او خرما ورکړي. د کوچني اختر ورځې د سبا ختلو څخه مخکې له دې چې عید گاه ته د لمانځه لپاره ولاړ شي د سرسایه ادا کول مستحب دي, خو د لمانځه وروسته یې ادا کول مکروه دي که څه هم صحیح کیږي. یو فقیرته دیو کس سرسایه ورکولای شي که د یو نفر سرسایه څو فقیرانو ته توزیع شي په دې کې د فقهاء اختلاف دی نو غوره داده چې لږ تر لږه یو فقیرته د یو نفر سرسایه ورکړل شي. څو کسان هم یو فقیر ته سرسایه ورکولای شي.

و الله ولی التوفیق و علیه التکلان

الفقیر رفیع الله عطاء

۹ د رمضان المبارك ۱۴۱۹ هجري قمري



## جمعیت اصلاح و انکشاف اجتماعي افغانستان
## د نشراتو او فرهنګي څانګه
## د فکري سمون لړۍ

## (۳۰)

جمعیت اصلاح یوه آزاده او غیر دولتي ټولنه ده چې په ۱۳۸۲ لمریز کال کې د افغانستان په مادي او معنوي رغونه کې د ونډې اخیستلو په تکل جوړه شوه او د عدلیې وزارت څخه یې رسمي اجازه نامه ترلاسه کړه, دغه ټولنه په لاندې څانګو کې فعالیتونه لري:

***د نشراتو او فرهنګي څانګه:**

*(د ملي اصلاح, ژوند, اذان, او قافله خپرونې)

***تعلیمي څانګه:**

(د مستقبل ښوونیزه اداره, دامام ابو یوسف ښوونیز مرکز او د اصلاح عالي لیسه)

***د مهارتونو د ودې څانګه.** ***علمي او تحقیقاتي څانګه**

***د اجتماعي خدماتو څانګه** ***د عامه فعالیتونو څانګه**

***د ځوانانو څانګه** ***د خویندو څانګه**

***د مرکزي دفتر پته:**

کابل, تایمني واټ, د حاجي محمد داد څلور لارې, څلورم سړک
تیلفون شمیره: ۰۷۹۹۳۹۴۰۱۶ / ۰۷۵۲۰۱۶۶۴۰

**د نشراتو څانګې دفتر:** کابل, خوشحال مینه, الف ساحه, د شاداب ظفر بلاکونو تر شا.
تیلفون: ۰۷۹۹۳۹۴۰۱۵, ۰۷۵۲۰۲۱۲۲۱/ ۰۷۷۸۱۹۱۳۸۲

**د سیمیزو دفترونو پتې:**

**ننګرهار:** د جلال آباد ښار د محاکمو ریاست تر شا چهل متره سرک, ښي لاس څلورمه کوڅه, لومړی کور د تیلفون شمیره: ۰۷۰۰۶۳۲۴۸۰

**کندهار:** د کندهار ښار, سره جامع, دویم پوړ, د میوې مارکیټ لویدیځ ته,
تیلفون: ۰۷۰۰۳۰۸۲۷۱

**لغمان:** مهترلام ښار, حمزه مارکیټ, د تیلفون شمیره: ۰۷۹۹۴۴۲۹۲۰













